د ۱۳۵۱ لمریز کال
دوزی میاشت
شپږ مه ګڼه
پر له پسې ګڼه ۱۴۳
د تاسیس کال ۱۳۳۹



# کندهار

د اطلاعاتو او کلتور
...اشتنی خپرونه



اعلیحضرت شهید سعید محمد نادر شاه غازی
د خپلواکۍ د بېرته اخستلو د معرکې ستر
قهرمان او د هیواد ناجی



...و ږ محبوب ټولواک معظم همایوني اعلیحضرت
...یواد د خپلواکۍ ستر حامي چې د شاهانه ذات
...ستر قیادت لاندې د ژوند په ټولو مادي او معنوي
...حو کښې د ګران هیواد زیات پرمختګونه په
...خه شوي او اوس هم موږ د انکشاف پر خوا
چټک ګامونه اخلو

د یوې ګڼې بیه ۳۰ افغانۍ

# په کندهار کې د هیواد د خپلواکۍ د ٥٤ کالیزه په ځانګړو مراسیمو ونمانځل سوه

د ورځې لومړۍ برخې چې د هیواد د خپلواکۍ د بیرته اخیستلو د ٥٤ کالیزې سره برابره وه، د عسکري رسم ګذشت په شاندارو مراسمو ونمانځل سوه.

د عسکري رسم ګذشت تر شروع کېدو د مخه د کندهار والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا او د قول اردو قوماندان ډګر جنرال ارکان حرب محمد سعید د ګارډ د قطعې سلام قبول او هغه یې معاینه کړه. وروسته له هغه د کندهار والي او د قول اردو قوماندان د موټر په سردالي خپل مخصوص کمپ ته تشریف یووړ. په دغه وخت کې باچاهي فرمان چې د شاهانه رعایاوو په عنوان صادر سوی و د کندهار د والي له خوا



د کندهار والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا د پاچاهي فرمان په لوستلو سره د هیواد د ٥٤ کالیزې د جشن مراسم پرانیزي.

و لوستل سو او د رسم ګذشت مراسم شروع سول.

د دغه مراسیمو د ننداره ی د پاره ملکي او عسکري عالي رتبه مامورین د هند او پاکستان قنسلان، په کندهار کې اوسېدونکي پښتونستانیان نور زیات شمیر خارجیان او په زرونو ننداره چیان د احمد شاهي وات په غاړه وخواوو کې ځای نیولی و.

د مراسیمو په پای کې د کندهار والي، یو شمېر عسکري صاحب منصبانو، د ښار مخورو او د پوهنې شاګردانو په هرات دروازه کې د شهیدانو په مزار باندې د ګلو ګېډۍ کښېښودلې او د هغوی روح ته یې دوعاوې وکړې.

(ب)



د شاهانه اردو یوه بله قطعه د رسم ګذشت په حال کې لیدل کېږي



مرحوم والاحضرت غازی سپه سالار سردار
شاه محمود خان د پیوار فاتح



د کابل فاتح والاحضرت مارشال شاه ولی
خان غازی چی دخپلواکی په معرکه کښی ئی
لویه برخه درلوده



دخپلواکی دستر ویاړ څلی



د ۱۳۴۱ کال دوړی میاشت

# موږ د خپلواکۍ د ستر نعمت خاوندان یو

خپلواکي د هر قوم بشري او بین المللي حق او د ژوند لوی نعمت او ملي افتخار دی او تر ټولو هغه ولس د دغه نعمت او افتخار وړ دی چې په دغه لار کښې ئې فدا کارۍ کړي او تر مالونو او سرونو تېر شوي وي.

افغان ولس یو له هغو ننګیالیو او پر خپلواکۍ مینو قومونو څخه دی چې د پردو سلطه ئې هیڅکله پر ځان نه ده منلې او تل ئې د خپلواکۍ او ملي ویاړ ژوند کړی او استعماري طاقت هغه وخت غلبه پر ځینکه کړې ده چې دوی ئې په خپل منځ کښې سره اچولي او د بې اتفاقۍ له کبله ئې کمزوري کړي دي.

هغه وخت چې دوې پیړۍ پخوا لوېدیځ استعمار د نړۍ پر زیاترو برخو غلبه موندلې او د هند ستر هیواد ئې تر اسارت لاندې راوستلی ؤ نو موږ پر هیواد ئې درې حمله لښکر کشۍ وکړه او دریم حمل ئې څلور پنځوس کاله پخوا په «تل او وانه» کښې زموږ د ستر پښتون اعلیحضرت شهید محمد نادرشاه غازي تر قیادت لاندې د افغاني مجاهدینو د لاسه سخته ماته وکړه او زموږ ملي خپلواکي ئې ومنل.

خو څنګه چې استعمار زموږ په منځ کښې د تفرقې او بې اتفاقۍ تخم پاشلی ؤ نو هر کله چې موږ د خپل هیواد په اصلاحاتو بوخت ؤ څلور څلوېښت کاله د مخه د استعمار په ټونګ د مرتجع او خاینو عناصرو له خوا داخلي اړودوړ منځ ته راغی او موږ ته ئې مادي او معنوي زیان ورساوه او د که اعلیحضرت شهید محمد نادرشاه غازي ته بیرته وای زموږ خپلواکي د لاسه تلله.

اوس د نیکه مرغه موږ د خپلواکۍ د ستر نعمت خاوندان او د خپل د بیو کړات او ترقۍ غوښتونکي پاچا تر ستر قیادت لاندې د خوشحالۍ او آرامۍ ژوند تیروو او د درو پنځو کلنو اقتصادي پلانونو او انکشافي پروژو د تطبیق له کبله مو د هیواد زراعتي، صناعتي، عمراني، اقتصادي او نورو مدني چارو پراختیا مومي او زموږ د خلکو د ژوندانه ئې اړه ولي او زموږ پر فردي اجتماعي او ملي ژوندانه ئې زیاتې اغیزې کړي او د خلکو ژوند مو ورځ په ورځ سمیږي.

هو، زموږ ننګیالیو پلرو نو خپله ملي خپلواکي د میړانۍ او سرښندانۍ په برکت بیرته خپله کړه او موږ ته ئې د امانت په توګه وسپارله نو موږ ته هم په کار ده چې هغه د نن ورځې د علم او کمالاتو په زور وساتو او د خپل هیواد د لوړتیا په لار کښې تر خپله وسه پوره کوشش او فعالیت وکړو او د خپلو انکشافاتو په لار کښې د حکومت سره خپله همکاري وټه سپموو، باید په خپل منځ کښې یو موټی شو، وطندوستي، د ولس خدمت، همنوعي د هیوادوالو د هوساینې په لار کښې ایثار او فدا کاري خپل شعار وګرځوو او هیواد د همایوني معظم اعلیحضرت تر ستر قیادت لاندې د عصري پرمختګ لوړو پوړو ته ورسوو.

«غلام محی الدین ایوبي»


د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبي)

لیکوونکی ډله

عبدالقدوس (نجیب)
احمد (راشد)
عبدالمنان (امین)

میرمن ملاله (اڅکزۍ)
طباعتي همکار علمي (بارک)
اداره: د شهیدانو واټ
د ټیلفون نمبر ۲۸۸۴

# پښتونستان

# د پښتنو او بلوڅانو هیواد دی

پښتونستان د افغانستان او پاکستان تر منځ پروت او د پښتنو او بلوڅانو تاریخي سیمه او ټاټوبی دی او دا ډېر د ولس د پېړۍ پېړۍ راهیسې په دغه سپېڅلې خاوره کښې اوسي ځان ته خپل کلتور د ملي روایات عنعنات، تاریخ او جغرافیائي موقعیت لري او غواړي چه د نورو مترقي انسانانو په څېر په خپله خاوره کښې خپلواک ژوند وکړي او په خپله خوښه او خپله اراده خپل ملي حاکمیت سمبال او ژوند پرمخ بوزي.

دغه زړور او ننګیالي ولس په هره پېړۍ کښې د پردو د پرغل په مقابل کښې په ټینګه درېدلی او د استعمار سره ئې سخته مقابله کړې او دا ئې ثابته کړې ده چې پښتون او بلوڅ د بل چا حاکمیت او حکومت نه مني او نه څوک کولای شي چې د هغو د ملي ارادې نه پرته په زور پر بل څه په زور ومني او استعماري اراده پر تحمیل کړي.

دغه خپلواکي غوښتونکي ولس د هند او پاکستان څخه د انګلیسي استعمار په له منځه وړلو او وړک کولو کښې لوی لاس درلود نو څه د زیاتو کلونو راهیسې دغه دوه هیوادونه خپلواک دي پر څه په دغه ننګیالي ملت ته د خپلې ارادې او ملي خپلواکۍ حق نه ورکول کېږي.

پښتونستان زموږ ورور او ګاونډی هیواد دی او زموږ سره عنعنوي، نژادي، ژبني، تاریخي، کلتوري او جغرافیائي نژدې علایق او نه شلېدونکي روابط لري او لکه څرنګه چې د پښتونستان ملت زموږ سره په سختو حالاتو کښې خپل کومک نه دی سپمولی او د افغانانو د استقلال په جګړو کښې ئې برخه اخستې ده او موږ د یو او بل سره پوره همدردي او غمشریکي لرو او هیڅ امکان نه لري چې موږ دې اوس پر آرامه کښېنو او د خپلو پښتونستاني ورونو سره د ملي خپلواکۍ په حاصلولو کښې مرسته ونه کړو.

هم دغه سبب دی چې د پاکستان سره زموږ مناسبات وران او زموږ غوښتنه دا ده چې پښتون او بلوڅ چې زموږ ورونه په حیث په پښتونستان کښې د زرو نو کلونو راهیسې اوسي خپل ملي حاکمیت ترلاسه کړي او په خپل هیواد کښې خپلواک واوسي او د خپل ولس د پرمختګ او هوساینې په لار کښې زیار وباسي.

موږ افغانان غواړو چې د پښتونستان موضوع د پښتونستانیانو د رضایت، آزاد قضاوت، ملي قناعت او خپلې ارادې د حق په اساس حل شي ځکه چې دې تر څو چې دغه کړکېچ د منځه لاړ شي چې اوس زموږ او د پاکستان تر منځ پېښ دی.

پښتونستان نو تاریخي حقیقت دی، او هرو خپلواک کېږي او خپله پوره خپلواکي ترلاسه کوي او پاکستان د دغه حق په ورکولو سره د پښتونستان او افغانستان د دواړو اسلامي هیوادونو دوستي او ملاتړ حاصلولای شي.

د سنبلې نهمه ورځ چې د پښتونستان ملي او تاریخي ورځ ده د دغې ورځې د راتللو له کبله خپل ورور او ګاونډي هیواد ته مبارکي وایو او د دغه ورور هیواد پوره خپلواکي او واقعي نېکمرغي غواړو.

«ژوندی دې وي پښتونستان»



**تهیه کوونکی: «قند یلوال»**

# تور سپټمبر

تور سپټمبر یا ایلول الاسود د فلسطین د کماندوګانو د موسسو څخه یوه موسسه ده چې د ژورژ حبش تر لاس لاندې فعالیت کوي. دغې موسسې د سپټمبر په میاشت کې یو مهم فعالیت وکی نو په همدې لحاظ ئې د تور سپټمبر موسسه بولي. ذکر شوې موسسې په ۱۹۷۰ کال کې د سپټمبر په میاشت کې پنځه الوتکې د بین المللي هوائي لارو څخه وتښتولې چې د هغو پنځو

الوتکو د جملې څخه یوازې د اسرائیلو ۷۰۷ جټ الوتکه د لندن هوائي ډګر ته ولاړه او پیغله لیلا خالد چې د دغې الوتکې تښتول یې غاړه درلودل هم په نوموړې

الوتکه کې د لندن هوائي ډګر ته بوتلل شوه او ملګرې ئې بندي کړل. د فلسطین مبارزینو د ژورژ حبش تر لارښوونې لاندې د امریکا یانو ۷٤۷ جمبو جټ الوتکه د

قاهرې میدان ته وتښتول او پر هغه هاې باندې ئې وچاودل د غه رنګه دری نورې الوتکې ئې په اردن کې ژرقاته وتښتولې او هغه ئې هم یو په بل پسې وچولې او هم ئې

د اسرائیلو ۱۱ تنه ورزشکاران د مونیخ د بین المللي لوبو څخه د سپټمبر په میاشت کې وتښتول د تور سپټمبر مبارزینو د ژورژ حبش تر لارښوونې لاندې داسې

حیرانوونکي کارونه کړي دي چې د دوی د غو فعالیتو نړیوال په حیرانتیا کې اچولي دي څو میاشتې د مخه

د تور سپټمبر مبارزینو د اسرائیلو د هوائي ډګر پر ترمینل حمله وکړه او په هغه پیښه کې ئې ډیر اسرائیل مړه او ټپیان کړل، چې د نوموړې موسسې د مهمو کارو

څخه شمیرل کیږي. د تور سپټمبر د موسسې فعالیتونه پټ او په ډیره چټکۍ سره ئې پای ته رسوي چې حتی د فلسطین د آزادۍ د نهضت کمیټه هم د هغه څخه نه وي

خبره او هم نوموړې موسسه د مرکزي کمیټې لارښوونې په هیڅ کارو کې نه مني. په مرکزي کمیټه کې د ټولو کماندوګانو غړي شامل دي. د مرکزي کمیټې

مشر او لارښوونکی یاسر عرفات دی. هغه وخت چې د تور سپټمبر مبارزینو دری بین المللي الوتکې ژرقاته وتښتولې نو د الفتح د موسسې رئیس یاسر عرفات وویل

چې زه د دې الوتکو د تښتولو څخه کوم خبر نلرم ورو سته تر هغه یاسر عرفات د تور سپټمبر د موسسې د مبارزینو څخه وغوښتل چې نوموړې دری الوتکې

په ژرقا کې ونه چاودي، مګر د تور سپټمبر مبارزینو د یاسر عرفات دغه خبره ونه منله او نوموړې دری الوتکې ئې د ژرقا په ډګر کې وچولې. نو مرکزي کمیټې د دوی د غه عمل ښه ونه باله، په همدې سبب سره ئې د تور سپټمبر د موسسې غړي د مرکزي کمیټې څخه وایستل.

د غه ترهغه چې د فلسطیني مبارزینو او اردن د نظامي قواؤ ترمنځ جنګ شروع سو، ژورژ حبش د المان د شترن د مجلې خبریال ته داسې وویل: «د غیلو مرامو د رسیدلو د پاره د دریمې عمومي جګړې هرکلی کوم.»

دا هم باید وویل سي چې ولې دغه مبارزین الوتکې تښتوي او د اسرائیلو په هوائي ډګر باندې حملې کوي او هم دغه رنګه د اسرائیلو سپورټ مینان د مونیخ د بین المللي لوبي څخه په تیښته وړي؟

هرڅنګه چې دغو مبارزینو دا خبره څرګنده په ډاګه اعلان کړې ده. چې د الوتکو د تښتولو څخه مو مقصد دا دی ژمونږ هغه مبارزین چې په اسرائیل و کې د آزادۍ غوښتلو او په

ځینو ادو پائي هیوادو کې د الوتکو تښتول او په ګناه سره بندیان دي باید له بنده خوشې شي له دې امله موږ د هغو هیوادو الوتکې تښتوو کوم چې زموږ مبارزین ئې په خپلو هیوادو کې بندیان کړي دي .

د تور سپټمبر مبارزینو په (۱۹۷۰) کال کې د فیډرالي المان، سویس او انګلستان الوتکې زرقا ته و تښتولې او د هغو د دغه الوتکو او مسافرینو په عوض کې ئې د خپلو بندیانو خوشې کول وغوښتل .

او هم د تور سپټمبر مبارزینو د مونیخ د بین المللي لوبې څخه د اسرائیلو اتنه ورزشکاران تښتولي دي او د دغو اتنو ورزشکارانو په بدل ئې کې د اسرائیلو څخه د خپلو ۲۰۰ مبارزینو د خوشې کول غوښتي دي .

کله چې د تور سپټمبر مبارزینو د دې بین المللي الوتکې زرقا ته و تښتولې او د تل ابیب پر هوائي ډګر باندې ئې حمله وکړل او ډېرو کسانو ئې مړه او ټپیان کړل، همدغه رنګه د اتنو اسرائیلي ورزشکارانو تښتول د مونیخ د بین المللي لوبې څخه، د دې سبب شول چې زیات اروپائي او ځینې عربي هیوادونه د تور سپټمبر پر مبارزینو باندې بدووائي او دغه مبارزین ملامت وبولي .

کوم وخت چې د تور سپټمبر مبارزینو په مونیخ کې پر اسرائیلي ورزشکارانو حمله وکړل نو په اول ځل ئې ۲ تنه او په دوم ځل ئې ۹ تنه اسرائیلي ورزشکاران مړه کړل او په دغه پېښه کې د تور سپټمبر د مبارزینو څخه هم پنځه تنه د اسرائیلي منصبدارانو د خوا یا په بل روایت سره د فیډرال المان منصبدارانو ووژل .

خو سره له دغه ځینو عربي هیوادو او پرتو موږ د مبارزینو انتقادونه وکړل او د دوی د دغه عمل ئې وغندی که د اېي خلکو په عادلانه ډول سره سترګې خلاصې کي او وګوري نو د اپه ښه ورته معلومه شي چې د فلسطین بیچاره خلک د (۲۵۱) کاله کیږي چې د خپلو کورو څخه شړل شوي دي او په سوځېدونکو دښتو کې ژوند کوي

هغه هوائي او ځمکني حملې چې د اسرائیلو د خوا څخه د فلسطین پر مهاجرینو باندې کیږي او د فلسطین خلک د خپلو کورو او ځمکو څخه په زور ایستل کیږي او د دوی ماشومان او سپین ږیري بېله کومې ګناه څخه قتل عام کیږي او ولې هیڅوک د اسرائیلو پر دغو ظلمو باندې احتجاج نه کوي او نه اسرائیلو ته بدوائي؟ په دې توګه د فلسطین خلک د اسرائیلو د غونډو ظلمو څخه په عذاب شول، نو په پولې فعالیتو ئې لاس پورې کي چې بیله د غو فعالیتو څخه نشي کولای خپل بندیان او ځمکې د اسرائیلي غونډو اړانو څخه خلاصې کي د فلسطین د مبارزینو پر دغو فعالیتو باندې ځینو هیوادو احتجاج وکي کوم چې دوی د اسرائیلو نژدې ملګري دي او یو د بله خپلې منافع سره ساتي څه وخت چې د تور سپټمبر مبارزینو د فیډرالي المان، سویس او انګلستان الوتکې زرقا ته و تښتولي او د ملته ئې وچولي هغو هیوادو چې د اسرائیلو سره اړدې مناسبات درلودل او د دوی نژدې ملګري وو د تور سپټمبر د مبارزینو دغه عمل ئې وغندې او احتجاجونه ئې پرو کړل کله چې اسرائیلو د خپل انتقام اخستلو په غرض پر فلسطینیانو باندې سختې هوائي او ځمکني حملې شروع کړلي او د اردن د رود د غربي ساحل او د غزې (۴۵۰) تنه ئې بندیان کړل او پر هغو باندې ئې هر ډول ظلمونه کول نو د نوموړو هیوادو د خوا پر اسرائیلو کوم احتجاج او بد وئیل نه شول کله چې بیا د تور سپټمبر مبارزینو د تل ابیب پر هوائي ډګر حمله وکړل، اسرائیلو هم د دغه انتقام اخستلو په بدل کې د لبنان پر جنوبي برخو باندې سختې حملې شروع کړلي او د اسرائیلو د غو حملو په نتیجه کې د فلسطین په سوو کوچنیان او سپین ږیري بېله ګناه څخه ووژل شول نو هغو هیوادو چې د فلسطین د مبارزینو عملونه به ئې غندل او پر هغو به ئې احتجاجونه کول، ولې ئې د اسرائیلو دغه قتل عام و نه غندی او نه ئې احتجاج پرو کي؟ او حتی د هغو سره ئې مرسته کول او د هغو د ظلمو لپاره ئې نوي اسلحې برابرولي چې اسرائیل کامیاب کي او د فلسطین بیچاره خلک تباه او برباد کړي .

«پاته په ۳۱ مخ کې»

د فیض محمد وزیري څېړنه او لیکنه:

# ستر ملي قائد

# د تاریخ یوه ګوښه

# حاجي میرویس خان

میرویس خان د شالم خان زوی په قوم هوتک په ۱۰۸٤ هجري کال کې د کلات په اتغر کې زېږېدلی دی. د مخه تر هغه چې د آزادي غوښتنې عالي سیاسي قومي افکار د میرویس خان په فکر کې ځای ونیسي، ده د یوه ډېر

لوی تجار په نامه شهرت درلود او ډېر لوی کاروانو په ذریعه به ئې د هند خوا ته تجارت کاوه میرویس خان د نرمي او ملائمي طبع خاوند و د ده متین فکر، لوړ اخلاق

سخاوت او مروت هر چا ته ځرګند و سربېره پر دې ګو لو

مهم او ښه صفت چې د میرویس خان سره ئې په مشرتوب او ملي مقاصدو او سیاسي میدانو کې ښه مرسته کوله ده فصیحه ژبه خوږه وینا او جذاب نطق و.

موږ میرویس خان د یوه پښتانه مشر او ملي قائد په حیث او پیاوړو غښتلي عسکر په نامه پېژنو میرویس خان د خپلې سلسلې په اعتبار کوم کارنه دي کړي

لکه چه د خپل مستقل شخصیت څخه ئې کار اخستی دی. میرویس بالذات د لوړ شخصیت او حساس دماغ څښتن و چې د پښتنو د ملت پر غاړې ئې پورته کې او پښتانه ئې د پردیو د ظلمو څخه خلاص کړل هغه وخت چې صفوي پاچا، ظالم ګرګین په کندهار کې مقرر کړی

و دغه ظالم ګرګین د هیڅ ډول ظلم څخه ډډه نه کوله

په دغه وخت کې پښتنو مشر نه درلودی کله چې میرویس خان د ګرګین دغه ناوړه ظلمونه د پښتنو په

مقابل کې ولیدل نو د پښتنو د خلاصون الی د پاره د هر ډول کوښښ څخه کار واخستی او د خپل هغه لوړه سیاست په نسبت ئې صفوي اشغالګرو ته ترا بده ماته ور کړل او د

پښتنو غیرتمند قوم ئې و ځوله نوی ژوند ورو پېژانده.

میرویس خان نه کاله د پښتنو ملي مشرتوب وکی او ګولو خلکو به میرویس نیکه ورته ویل چې تر اوسه پورې هم د میرویس نیکه په نامه یادیږي او په نیکه سره شهرت لري د پښتنو دغه ملي قائد په ۱۱۲۷ هـ کال کې

وفات سو او د کندهار د کوکران په سیمه کې ښخ سو. اوس هم د ده مزار ته د پښتنو تر او ښکې د ما ځت

غوښتلو د پاره ورځي او تر هر څه د مخه ئې د ده د کتیبې دا لندۍ تر سترګو کیږي.

د ننګ ګوڅه په مې هرڅوک وی

که پس له مرګه پر مزار د داشي شینه

میرویس خان علاوه پر نورو صفاتو یو ستر سیاس او ډیپلومات و چې



میرویس نیکه

د خپلې پالیسې په نتیجه کې ئې د اصفهان دربار تر خپل سیاسي نفوذ لاندې راووست

میرویس خان د اصفهان په دربار کښې

کوم وخت چې میرویس خان اصفهان ته ورسیدی

دی ئې قوي او غښتلي ګارډ ته وسپاری څودی حلقه بندي وساتي او څو ورځې پر له پسې په بند کښې و په دې وخت کې د ایران کابینه د ده سره بد بینه وه او په ښه سترګه ئې ورته کتل مګر بیا هم د اپښتو ن مېړه په دې بریالی سو چې د یوې کابینې افکار ور مغلوب کړي.

ربوی لحظی وروسته صدر اعظم میرویس خان ته داسی
وویل: «ستا په باره کی د کندهار څخه یو مکتوب راغلی
وڅنګه چې تا یخپله ددی قابل بولم نو خو اهش کوم
ی ته پخپله د حقیقت درویه اعتراف وکړی» .

کوم وخت چې صدر اعظم میرویس خان ته دا خبری
کړی نو میرویس خان ته چې د اصفهان د دربار د
مرانو بی اتفاقی ښه معلومه وه ډیر ښوشحال چې
ه وو اوس یی په دی وخت کی صد ر اعظم دده په طرف دار ی
ید اخله وکړه او ورته یی وویل :

«ته باید د تعصب او هغو ظلمونو له مخی چې ګرګین
ستا سره وکړی یدی کار و اخلی باید د حقیقت د مخی
توضیحات ورکړی او زه یقین لرم چې ته داسی سړی
یې چې خلاف له حقیقته به څه ووایی» .

میرویس خان چې ددوی د غه نفاق او بی اتفاقی
ایدل ، دا یی مناسبه وګڼل چې نور د حقیقته څخه
پرده پسته کی او رښتیا او واقعیت بیان کی نو دا چول
ی په خبرو شروع وکړل «تاسی زما څخه د حقیقت پوښتنه
وکړل او زه هم پښتون یم باید حقیقت ووایم هغه دادی
که ګرګین څه وخت نور هم په کندهار کښی پاته سی
کندهار وضعیت به ډیر خراب شی ځکه چې ګرګین
په دی ته دی قادر ره سوی چې خپل عسکر ادار ه کی او
تر یوه صحیح قانون لاندی یی راولی او هم یی د ډیرو
وزلو دار ایی غصب کړل او د هغو اولادونه یی د خپلو
عسکرو سره ګرجستان ته ولیږل او په دی ډول یی
کوښښ کاوه چې هغه یاغیان شی مګر ما نه پریښود ل
تو په کم وخت چې دی ډیر دوبی سره یو ځای کی او
د ډیر عسکر هم ورلری نو آیا دا خطره نسته چې د هغه د
حکومت سره موافقه ونه کړی ؟

کوم شی به وی چې ګرګین ددی موافقی څخه
ګرځوی او لی پاچا د ګرګین پر ځای د خپلی کا بینی
څخه یو لایق او تجربه کار وزیر چې له خپلل دین
مذهب او ملت څخه وی د کندهار د پاره نه ټاکی ؟
تر لمر سبینه ده چې یو وخت به دا پست فطر ته سړی داسی
موقع پیدا کړی چې د پاچهی دوراني او خرابی اسباب
او علل دا غونډ کړی» ...

میرویس خان چې په هغه مجلس کی دغه پورته خبری
وکړی د مجلس ټولو خلکو په پوره غور او دقت سره
واوریدلی . د دیوان بیګ طرفداران چې د ګرګین ډیر
نژدی ملګری وو او د هغه سره یی ښه مناسبات درلودل ،
د میرویس خان په دی وینا سره ډیر خواشینی سول او د
بلی خوا څخه د صدر اعظم طرفداران د میرویس خان
ددی وینا څخه ډیر خوشحاله سول او د میرویس خان
سره یی د اقول او وعده وکړل چې د دیوان بیګ
د پارټی په مقابل کی به موږ تا تر ډیری اندازی حمایه کړو
نو کوم وخت چې میرویس خان د او وینا اوریدل
ډیر خوشحاله سو او ده هم د خدای (ج) څخه د اخبره
خوښتل تر هغه وروسته به میرویس خان په هر ځای کی
ډیر استقبال کیدی او د صدر اعظم ډلی به دده ډیر
احترام کاوه د غی ډلی نه یوازی دا چې د میرویس خان
ښه احترام کاوه بلکه د میرویس خان شفاعت یی پاچا ته
وکړی او د ګرګین ظلمونه او نا حقی یی ټول ه پاچا ته
څرګند ی کړی ی او د فارس پاچا یی د میرویس څخه
خوښ او راضی کی په نتیجه کی پاچا میرویس خان
د بنده څخه وبخښی . په دی وخت کی که میرویس خان
غوښتلای هم یی کولای سوای چې کندهار ته راسی »
خو د فارس د دربار بی اتفاقی دده په فکر کی نوره خیال نه
پیدا کړل چې په هغو کی نه یوازی د قوم د آزادی راز پټ
بلکه د پښتنی خاوری وسعت او پراخوالی یی هم په نظر کی
نیولی ؤ .

میرویس خان د وی مهمی قوی درلودلی لمړی
قوه یی سرمایه او دوهمه قوه یی سیاست او پوهه او هم
د بلی خوا څخه د اصفهان د دربار د کابینی بی اتفاقی وه
چې دده لپاره یی ښه زمینه برابره کړی وه خو ددی
شیانو له امله میرویس خان د ټلو ار څخه کار وانه خستی
او په دغه کار کی یی په ډیرا حتیاط او فکر سره
کامونه اخستل . دا هم باید وویل سی چې د میرویس خان
دا لمړی سفر نه ؤ چې اصفهان ته تللی ؤ .

(لیدی خان موهنه د میرویس خان ډیر نــژدی
او صمیمی ملګری) پخپل کتاب محمود نامه کی لیکی چې
د میرویس خان د غه تګ و اصفهان ته څلرم سفر ؤ چې د قوم
د آزادی لپاره تللی ؤ .

میرویس خان د هندي خانو څخه صدر اعظم او نورو وزیرانو ته پیغامونه واستول او د هغوی څخه ئې د اجازه غوښتل چې د باندې ور ووزي او ددوی سره مجلس

وکړي او کابینې هم د میرویس خان د غه هیله ومنل او دهغه ئې د اجازه ورکړه چې راووزي او ددوی سره مجلس وکړي میرویس خان چې کوم وخت د هندي خانې څخه راووتی لومړی ئې د صدر اعظم سره ولیدل او د هغه

سره ئې مجلس وکړی او وروسته ئې هغه قیمتي هندي شیان چې د ځان سره ئې وړي وه صدر اعظم ته د سوغات په ډول ورکړل، بیائې د وزیرانو سره هم ولیدل او مجلس

ئې وکړی او هغوی ته ئې هم د هغو شیانو څخه سوغاتونه ورکړل ددغو سوغاتو په ورکولو سره د کابینې سړي ځان ته ...کی او د کابینې ...کي میرویس خان ته کښته سوي ... چې میرویس خان د شرق په دغه پوهیدی چې

د شرق په دربار ... ته د تحفې او سوغات په نامه څو ته مهم دولته لوبوي په دې توګه میرویس خان د قوم

د میرویس نیکه مقبره

د آزادۍ د پاره د خپلې پانګې څخه کار واخستی او د اصفهان د دربار د آمرانو خولې ئې د اینولې او دوی ئې د رشوت په واسطه د خپل ځان طرفداره کړل په دا بله ورځ

میرویس خان او ... چې د داخلي چارو د حل د پاره یو لوی مجلس جوړ یږي او ... کوښښ ئې وکړ چې د غه

مجلس ته لار پیدا کي او دی هم هغه مجلس ته ور شي څو په خپل د غه مرام کې بریالی سو او نوموړي مجلس ته ورغلی د مجلس رئیس د میرویس خان څخه د کندهار د والي

(ګرګین) په باره کې پوښتنه وکړل او میرویس خان ددې د پاره چې د مجلس نظر په د ګرګین په باره کې ځان ته معلوم کړي نو د مجلس د رئیس پوښتنې په جواب کې ئې د

ګرګین ډېر صفت وکړ او داسې ئې وویل: زه ګرګین د خپل ورور په حیث ګڼم او هم ئې د ګرګین د ښه ورتوب عدل او مساوات په باب خبرې وکړې، بر علاوه د صفوي حکومت په نسبت، د هغه د فرمان بردارۍ په ښه خوا کې ئې

په نظر یې ور کړه چې: «دا ارشتیا وه» کوم وخت چې مغول د ګرګین له مقرریدو څخه د کندهار د نائب الحکومه په حیث خبر شو نو هر چا د مخه ماده له قوه کار واخیستی

او د ګرګین په غیاب کې ئې د کندهار په ساتنه کې زیار وایستی.

په دغه وخت کې د دیوان بیګ چې د ګرګین ډېر نږدې ملګری ؤ د موقع څخه استفاده وکړه او د ګرګین په بدویلو ئې شروع وکړه.

ده وویل «ګرګین ډېر فضول سړی دی دی تر اوسه و نه پوهیده ی، چې میرویس خان دی د ځان ورور بولي، دده سره ئې ډېر ظالمانه رفتار وکړ او نه

پوهیږي چې میرویس خان دده حقیقي معاون او ملګری دی.

په دغه ورځ مجلس پای ته ورسید او د میرویس خان د غه فصاحت او بلاغت ټول مجلس په فکر کې واچاوه.

په دا بله ورځ دیوان بیګی ګرګین ته داسې نوشته کړه چې «نو لیاقت جمع آوري یکصد هزار تومان را بندارید» د اصل ژړه تومانه معلوم ندي چې آیا په هغه

وخت کې د اصل ژړه تومانه د کندهار مالیه وه که څنګه؟

وروسته تر هغه بیا میرویس خان خبر شو چې د صدر اعظم په کور کې یو مجلس جوړ یږي

نو میرویس خان خپل ځان هغه مجلس ته ورورساوه او د مجلس د ټولو خلکو سره ئې د لاس روغبړ وکړ ددې څخه

دا معلومیږي چې میرویس خان په خپل مقصد کې پوره بریالی ؤ او هم ئې کولای شوای چې پدې وخت کې د صدر اعظم په اجازه هر ځای ته ورلاړ سي

## د میرویس خان اتګ حج ته:

هغه وخت چې د فارس پاچا په لوړ آواز سره د

میرویس خان بې ګناهي اعلان کړه نو د میرویس خان سوخ د اصفهان په دربار کې یو په دوه زیات سو، هغه وخت

ورو سته میرویس خان د بیت الله د زیارت اجازه وغوښتله او دغه دلیلونه ئې وړ وړاندې کړه • ... ويل:

د دنیا د مشقتو او تکلیفو څخه ستړی شوی یم او بل دا چې ناروغه یم او هم د مکې ډیر شوق لرم چې د

مقدسو ښارو او ځایو زیارت وکړم او د مکې او مدینې په زیارت مشرف شم او وروسته په ریاضت او دعا بوخت

شم که اعلیحضرت اجازه راکړي نو د زیارت ورو وسته به بیرته د اسې راسم او خپله ځوله کورنۍ به د کندهار څخه اصفهان ته راولم او د لته به خپل ژوند کوم. هو، که ستاسي

خوښه وي خپله ځوله قبیله او خپلوان دلته را غواړم او امر صادر کړی چې را سي •

څنګه چې سلطان ظاهراً د مذهبي مراسمو ډیر پابند و څکه ئې نشوای کولای چې د میرویس خان دا عزم فسخ

کړي او د میرویس خان د دې خبرو څخه ډیر خوشحاله شو او وې ويل: هیڅوک دې په میرویس خان غرض نه لري او

نه دې څوک د ې د دغه لوی عزم د اګر ز وي نو میرویس خان د خپلو ملګرو سره د مکې خوا ته روان سو او مکې ته ورسید •

ده د حجاز د علماو سره ولیدل او هغه سوغاتونه او تحفې چې د ایران څخه ئې وړي وې، د هغه ځای علماو ته ور کړې. وروسته بیا مدینې ته ولاړی او د

ښار مقدس ځایونه ئې وکتل او هم ئې د هغه ښار د علماو سره مجلس وکی او هغوته ئې هم سوغاتونه ور کړل •

## د میرویس خان مناجات په مدینه کې

ریدی خان مومند په خپله مجموعه د نامه کې لیکي چې په مدینه کې میرویس خان دا سې مناجات وکړ چې د لته عیناً هغه منظومه را نقل کوو:

ولاړ ی د شپې ئې په یثرب که کافر یاد
رسول د خدای ته چې سو قوم بربا د

ستا پسراماتد را غی د ظلم دوران
واوره رسوله (ص) د دې قوم فغان

پښتون خو ستا په نامه ځان کې فدا
ای خیر الناسه واوره ته ئې ندا

وژغوره دوی ته د ظالم له لاسه
ګرګین له منځه د پښتون نو باسه

مرګ وژوندون مود اسلام د پاره •
ستا د دربار، ستاد سلام د پاره

زا غلم له لیری ستا د دربار ته نبي
ته هي شفیع سخه د ای غفار ته نبي

چې په پښتون قوم نازل کا رحمت
کړ ی ئې خوندي ناموس په خپل مرحمت

ستا شریعت سي ټینګ په منځ د پښتون
ورک سي بیداد او کم سي رنځ د پښتون

دامې دې سو ال ولاړ دی در ته یمه
محتاج د ې تش و ای نظر ته یمه

سر که ا یوز ته زموږ حال وګوره •
د ظالم ظلم بدا حوال وګوره

نه ئې له تا شرم و حیا سته نبي
نه شرم کاندی له عیسی - ادمنی

عرض مې د حال وکا و تا ته پیشوا
بل څوک مو نسته خو اله ګیر پر د نیا

## هغه سوالونه چې میرویس خان د حجاز

## علماو ته وړاندې کړل

وروسته تر هغه چې میرویس خان د مدینې عالمانو ته سوغاتونه او تحفې ورکړې نو بیرته مکې ته راغی او د هغه ځای د عالمانو څخه ئې پوښتنې وکړې

(نور بیا)

# د کندهار د سیمې خاصې لوبې

**دوهمه برخه**

چې سړی چنګک ددې ځغلوی‌او ډېری خطر ناکې دی ځکه که‌دچا د پښې سره تصادم وکړي نوحتماً د هغه‌نفر پښه زخمي کوي بلکه دهډوکي دماتیدو خطرهم ورسره وي.

### دره‌خط :

دره‌خط چې په‌اصطلاح سره (دره‌خت) بلل کیږي یوناوړه‌اودخطر ځخه‌ډکه لوبه‌ده ډیرځله په دغه لوبې کې هلکان بې هوښه او یاسخت زخمي

شي ددې لوبې دپاره هلکان لومړی‌ځپلې لنګوټې ډېرې‌سختې اوټینګې تاووي‌او وروسته‌ئې غبرګه کړي‌ځودیوه پنډواشکي شکل واخلي. بیادمځکې

پرمخ لوی‌ګردی‌خط کاږي‌په دی وخت کې هلکان دوې برخې کیږي اویوه‌ډبره‌دوچې او لندې په‌نامه وهواته غورځوي. ډبره بېرته‌مځکې ته‌را لوېږي

اودوئې ګوري چې د ډبرې وچه‌ خوا پورته‌ده‌او که لنده‌خوا نتیجې ترمعلومولو وروسته یوه‌خوا وخط ته‌لوېږي‌او بله خوا نوموړې تاو کړي‌ددې پلاس کې

اخلي اوبه‌ډېرمهارت‌پرهغو نفروچې په‌خط کې دننه‌وي وار ونه‌کوي هغوی بیاکوښښ کوي‌چې بوله وهونکو ځخه‌دخط‌په‌دننه کې پالښته ووهي او لوبه وګټي

په‌دې توګه‌دبوی خواددرو وار وناوی اوله بلې خوادلښتو وارونه، ترڅوچې دخط دننه نفر په دې بريالي سي چې بوله‌وهونکو ځخه‌دخط‌په دننه کښې

پالښته‌ووهي او لوبه پخپله ګټه تمامه کړي. وروسته مغلوب کسان وخط‌ته‌داخلیږي او لوبه بیاپه پورته ډول شروع کیږي ترڅوچې ټول ځه ستړي، زده او کوفته کیږي‌او له‌ځا لیته لوېږي.

لکه څرنګه‌چې ځینې ناوړه لوبې زموږ په ځوانانو کې رواج لري همدا رنګه‌ځینې ډېرې ښه‌خاصې لوبې هم مروجې دي؛ دمثال په توګه«توپ ډنډه» یوه‌ځوړا

ښه‌ملي لوبه‌ده، په‌شرط ددې چې فني شکل او په‌اساسي میدانو کې صورت ومومي.

### دا لوبه په‌دې ډول ده:

دوې ډلې هلکان‌یودبل په مقابل کې تقریباً یادیرشو ګامو په‌فاصله دريږي او هره ډله‌ځپل نژدې‌یوافقي او یوه‌دخط کاږي او تر هغه تیری ته

په‌دې بازي کې هم لومړی هغه نفر دتوپ او ډ په‌استعمال پیل کوي‌چې د ډبرې په‌وچه لنده ګټه کړي‌وي‌او په‌اصطلاح کې ودغه نفرته‌یوخ و

نورنفرټوله او مه‌بلل کیږي اودهغوی دپښیدو داسې ترتیب‌دی چې یوخ نفرد ډنډې په واسطه وه لوری‌ته‌توپ‌ونه‌وهي او په‌دې ترځ کې یونفر په

چالاکې سره ځغلي اودمقابل لوري وخط‌ته‌ځان ر په‌دغه وخت کې که‌چیری نوموړي هلک دهغوی ا پداسې حال کې چې دهغوی وخطته‌نه‌وي ر

وویشتل شو نو هغه هلک اودم او لوبه بایللې ده پرته‌له ویشتلو ورسیدی نو هغه هلک یوخ قدرت لري‌چې له هغه‌خوا ځخه توپ ووهي او ځان راورسوي په‌دې توګه‌دا لوبه‌دوام مومي.

د کندهار هلکان علاوه‌پر پورتنیو لوبو په‌لنډډول دهغو بیان وشو ډیری نوری لوبې هم که‌چیری ځه‌دهغو په برخه کښې وویل شي

ښائي چې ډېروخت ونیسي‌ځوددې لپاره چې پاته بیځې له لیکځ ځخه‌ونه لوبېږي نودهغو نومونه‌دا هیله‌ده‌چې ګران لوستونکي دپاته لوبو په نومو اکتفاوکړي‌اوهغه په‌دې ډول دي.

واروارونکی، اناګی، ډونډ‌چرګک، پټیدو ټنډه‌خره، آلادا، توره‌وځکه، کبډي، کچه نیوونکی، کاترشک، خوسی، لپانکی، ارغنچ

(پاته په ۳۲مخ کی)

د ایوبزي په قلم:

د کوچنیانو د وړکتون په هکله:

# د وړکو اساسي تعلیم او سالمه روزنه د هیواد د راتلونکې پر مختګ ستر اساس دی

د وړو کې کېدن پرته له تعلیم او روزنې څخه بل هیڅ مکلفیت او وظیفه نه لري او د خپلې ناتوانۍ، بې فکرۍ او صلاحیت نه لرلو له کبله د کوم کار، اقدام

او فعالیت کولو امید نه ځنې کېږي او د خپل مور او پلار او د کورنۍ د نورو غړو و لاس ته ګوري او خپل ټول وخت په ساتیري او طفلانه کارونو سرته رسوي هر کله چه

د راتلونکې ژوند څخه هغه وخت د امید وړ ګڼی چه هغوی ټولنې او لا د (نجونې او هلکان) سم روزل شوي او د عصري تعلیم او پوهې څخه پوره برخه ولري.

د اسلام اجتماعي دین هم دوی ته او علم د نېکمرغۍ او ښه ژوند متضمن ګڼي او مور او پلار ئې په دې مکلف کړي دي چه خپل اولاد ته د زمانې د اقتضا او هغوی د عصر د شرایطو سره سم د اسلامي تعلیماتو په چوکاټ کښې تعلیم او تربیه ورکړي.



هغه ممتاز کوچنیان چې سږ کال ئې د کوچنیانو په وړکتون کې خپلې جائزې تر لاسه کړې دي

لوی شي هلک د سبا پلار او نجلۍ د سبا مور او د هیواد او ټولنې د راتلونکې سرنوشت هغوته سپارل کېږي.

د روزنې پوهان له دغه کبله د وړو کو روزنې، تعلیم، اخلاقو او پر سمه لار د هغو لوېدلو ته زیات اهمیت ورکوي او خپل زیات کوښښ د هغو سالمې روزنې، اساسي تعلیم او اخلاقو ته اړوي او د .. وه هیواد

د وړو کو اساسي تعلیم او سمه روزنه د ټولنې او د راتلونکې پر مختګ او د هغوی نېکمرغۍ ستر اساس دی او که میندې او پلرونه عرفاني او تربیتي موسسې او د وړو کو د روزنې ځانګړې د وړکې ی د وخت څخه پیاوړ شي تر عمر بوړی د وړو کو علم او کمال ته پوره پام وا وړوی او د هغو د روزنې په سمه توګه

(پاته په ۳۲ مخ کې)

عبدالقدوس صاحبزاده:

# په جهان کې خدايه څوك بې واكه مه کې

ځه په ئي خوب ځه په ئي خندا ځه په ئي حال وي — چې دلاسه ئي وتلې استقلال وي
چې دښمن ددوا كډار دسرو مال وي — بشري حقوق ئي هم واړه پايمال وي

هم ئي ولي ئي په زور وي ترينه ځمکې
په جهان کې خدايه څوك بې واكه مه کې

بودولت نه چې څوك واخلي استقلال — پاى تخت ئي ورته نيم کې په ديوال
ورځې شپې مياشتې ئي ځه چې لا په كال — هيڅ خبر نه وي دوي بود بل په حال

نيم خټيځ او نيم لويديځ شي په نامه کې
په جهان کې خدايه څوك بې واكه مه کې

آزادي چې د چالاسه ځينې ولاړه — دوحدت ماڼي ئي هم شي بيا وبجاړه
دين دنيا ئي په خطر شي پسې دواړه — غلامي بده كړي ئي شي پېغاړه

تل به ګرځي دپسې ننګو په جامه کې
په جهان کې خدايه څوك بې واكه مه کې

يوملت چې بل ملت ته ماتي ورکې — آزادي ئي ځني صلب تاج ئي پسر کې
تصرف ئي دوطن ځمكه اوغر کې — دربه دري ورته ټول قوم او ټبر کې

په كلوئي خلك ورك وي په ځنګله کې
په جهان کې خدايه څوك بې واكه مه کې

مسلمين چې شي دكفر مغلوبان — په مسجد کې ئي تړي ورته اسان
نه تري لمونځ كولاى شي او نه اذان — ورته غيږ نه ايسته ارتوي قرآن

هم په خوله به ورته پوچ وائي او سپکې
په جهان کې خدايه څوك بې واكه مه کې

كه چا ځمكه دچا ونيوه په زوره — هغه ځمكه بيرته نه ور كوي ورو وره
لا پسې قراروي ئي خلك له كوره — سپين سترګې به ژ پاته نه وي دينه توره

واك تري كړي اى نشي هيڅوك پخه اومه کې
په جهان کې خدايه څوك بې واكه مه کې

اوس بوه خبر كوم تا ته افغانه — دا خبره غوږ کې ټينګه ساته ګرانه
علم زده كړه ځان خبر كړه له جهانه — په سيالي کې پاتې نشي له هيچا نه

د سيالانو نه، ته توره، نه خامه کې
په جهان کې خدايه څوك بې واكه مه کې

پلار نیکو نو دریته څمکه کړه آزاده | بیا یې ته ئې کړه هم لا پسې آباده
که صالح څوی د مفه ئې ته نا چاده | پلار کېڼې مسځي به کړې ته بر باده

تر ڼې کې خپله ډیرنګه علامه کړی
په جهان کې خدایه څوک بې واکه مه کړی

آزادي پلار د ر سیار لی اما نته | بایدوه ئې سپاري څوی ته سلامته
آزادي که ته کړې زوند کې خیانته | آینده نسل به شي به خجالته

پام کوه د خپل تار یخ په هنګامه کې
په جهان کې خدایه څوک بې واکه مه کړی

«صاحب زاده» شهید او روح دې وي ښاد واده | هم غازیان دې وي ژوندي په مسکه غاده
ظاهر شاه په قر خنده عصر کې و باده | باک الله ته ورد ته طول د عمر غواړه

د ده عصر کې تار یخ نا پا که مه کړی
په جهان کې خدایه څوک بې واکه مه کړی

(لالی ماما)

## استعمار

هغه وخت چې استعمار پر دنیا خپور ؤ
د افغانانو د ده سخته شور ما شور ؤ
دمیو ند د جګړې ځای پر علاقه مند ؤ
وکا بل ته ئې کاږه د سترګو تور ؤ
افریقا، هند، پاکستان لا خپلو اکه نه ؤ
هغه وخت د استعمار د څپې لوی پسور ؤ
دمیوند په جګړه هم چه تاو انې سو
په تقلې ځولو هر افغان ته ور ورؤ
لیو خت ور وسته دیو لدک جګړه شروع سوه
دا و تلې په خرابی زموږ د کور ؤ
پر بو لدک د افغانانو قدرت لیږ ؤ
هر یو ځوان په خپلو ځنو کې نسکور ؤ
دوطن په ننګ ئې با پلو لسر و نه
دا کردار اداکول پر افغا نیو ؤ
نه یو ټانک نه تیاره افغا ندر لوده
هر یو ځوان د خپلی خاورې ځیر غمخور ؤ
پر کلابې دوروړي تار یو حملې
هر یو ځوان لکه پټنګ سوی په اورؤ
دا حمله د غلیم سټې سخته حمله وه
په دې حال کې لا دې هم ځیر کل و کور ؤ
دغه ور ځ زموږ د ځوا نانو ترخه ور ځ وه
په د ایل سپا په ځپا د کې دا غم زور ؤ
په اخلاص ځوانا نو ونیې لی ملا و ی
هر افغان په بې صبرې د جنګ پر لو ر ؤ
چار خصت اخست د ګرانی مور او پلار ده
څوک د لوښخه رو ان باته به کود ؤ
چا به تبر چا چاړه و ه ور ا اخستې
هر سپون ځیر ی لا پدې وخت کې سر تور ؤ
ځیر رحمت دې وي پر هغه کام د و ستا نو
چې په یاد ئې د ټیکه او با باګو رؤ

## شهید ته سلام

ای د وطـن د ناموس ننګ شـهیده
د آزادې د ده و مبې جنګ شهیده
د قربانې د ې څو یم کال پوره شو
ستا د ژوند کې مبارک خپل لپوره شو
د آزادې ځبوې دې بلې کړې لی
ښکاره دې موږ و ته منزلې کړې لی
تا پرې د ې ځنو بار انونه و کړه
وطـن دې ژبې او سره ګلونه و کړه
د دې ګلونو ته بها ر جوړ شو
د بلبلانو پرې چغا ر جوړ شو
د آزادې صبح صادق راغی
ستا د سر و سر و و ځنو شفق راغی
ای د وطن د آزادې شهیده
د پیر نګیانو په ګولې شهیده

د قربانې عوض به خدای در کوی
حورې غلمان به هغه ځای در کوی
ځیر عمر پس زموږ سلام و اخله
د خپل ساقې د لاسه جام وا خـله

فضل الرحیم ساقی

# د خپلو دوستانو راز ساتل ستاسو د عالي اخلاقو نښه دی



**تهیه کوونکې ملاله اڅکزۍ**

د راز ساتنه د انسان د ښو اخلاقو نښه ده. یعنې کله چې یو دوست د خپل مشکل د حل کولو لپاره تاسو ته خپل د راز افشاء کړي. د نښه تر دې چې تاسو

د هغې د مشکل د حل لاره پیدا کړئ. د هغې قول د راز میدان ته راځي او قول د هغې د خصوصي راز نښه خبروي او مړي باید څوک امتحان شي چې که د دې عالي صفت

د رلوونکې وي خو ښه که نه نو دی انسان کالي ځني قول کړي.

عالمان وائي که غواړئ څوک وازمویئ نو لومړي ورته دروغ ووایه که ئې د راز پټ وساته ور دوسته نو بیا حقیقت ور ښیاورته ووایه.

اکثره خلک دې ټکي ته په سرسري نظر ګوري او هغه ته په یو حیث قایل نه دي. که و پوهیږي چې د ژوند قول مشکلات او بدبیني د دې لاري نښه شروع کیږي

نو په دا کار ورته د اهمیت وړ ښکاره سي.

ځکه هر انسان د یو خصوصي ژوند در لونکی او په دې ژوند کې یعني وخت پېښیږي چې ځیني مشکلات

انسان ته پېښ شي که ئې د دې مشکلاتو دفع پخپله و کړای شو خو ښه که نه وي نو خپل یو دوست ته په دې باره کې مراجعه کوي او د هغه نښه مرسته غواړي نو په دې ځای

کې د هغه اصلي وظیفه شروع کیږي. که ئې دوست د حل لاره درلوده خو به ورته ووائي او که نه وي نو راز به ئې پټ وساتي. که په دې ترتیب د هغه د راز پټ ونه ساتل

شي نو د یو مشکل پر ځای ئې خپل دوست ته دوهم مشکل پیدا کړي په دې چې هغه د دې پېښې نښه ټبر څوړ وي. ځکه

چې هغه نه غواړي چې په خصوصي ژوند او مشکلاتو ئې نور هم خبر شي ځکه چې د پښتو یو مشهور متل دی چې وائي دوست ته حال وایه او دښمن ته لاڅې وهه.

نو په دې ځای کې دې چې د خصوصي مشکلاتو نښه ئې نور هم خبر نه يي او ور باندې د راز تبصري او خبري کوي خصوصاً زموږ په محیط کې چې فقط یوه خبره او یوه

اشاره غواړي تر څو چې څو نورې ورسره ملګري او ور باندې مجلس جوړ کړي او ورځې ورځې په هغې بحث او تبصرو تیرې کړي هغه څوک په دې لې چې د خپل مشکل

د حل په لاره کې وي کله چې د خلکو دا بیځایه تبصري او مداخلي و اوري نو ئې طبیعت ژبات خرابیږي او چرت او فکر ورته لاره کوي په شپو شپو ویښه پاته کیږي

او صحت ته ئې تاوان رسیږي نو ګرانو میرمنو هر وخت یوې خپلې خور ته چې ستاسو نښه په خصوصي مشکلاتو کې مرسته غواړي صحیح او برابره مشوره ورکړي

او که ئې د حل لاره ورته معلومه نه وي و هغه ځانته مراجعه و کړي چې ستاسو په نظر دا کار کولای شي بیله دې چې د هغه چا نوم په او ورته د ښیاست مشوره

ځني واخلي او پخپلو فایده منو مشورو او نصیحتو د یوې بلې میرمنې د ژوند ډیوه بله کړئ او مه پریږدئ چې ستاسو د شخصي مجلسونو او تبصرو له لارې د یوې بلې

خور چې په حقیقت کې هم ستاسو همجنسه او خور ده ژوند په خطر کې واوړي. ځکه د میرمنو محیط د میرمنو

و مرستو او فایده منو نظر یو نه الهتیا لري ترڅو چې

د یوا د بل په مرسته خپل ژوند منځ ته یوسي. او د اتفاق او یووالي سره ژوند و کړي.

# د لاسونو او نوکانو د ښکلا لاري

هر څه د مخه زموږ لاسونه د خلکو توجه جلبوي او هر نګه چې نه سو کولای چې د سینګار په ذریعه د هغه عیبونه پټ کړو نو باید له بلې لارې د هغه د علاج په لټه کې سو .

زیاتره وختونه د داسې میرمنو سره مخامخ کیږو چې هغوی د خپلو نوکانو او لاسونو د سینګار په برخه کې زیاته توجه کوي او غواړي چې د سینګار په ذریعه لاسونه ښکلي او تازه ښکاره شي، خو دغه میرمنې په دې نه پوهیږي چې ولې مو لاسونه د وچو د دنو روبر خو په نسبت زاړه ښکاري باوړ زړه پېږي په داسې حال کې چې دا موضوع ډېره ساده ده هغه دا چې د لاسونو پوستکي د غوړو د غدو څخه لږ برخوردار دی او په لږ وخت کې وچیږي . هغه غذایي رژیم چې د پوستکي د پاره ښودل شوي دي د هغه د ښکلیتوب او تازه ساتلو کې ډېره اغیزه لري او رعایت ګټور دی .

د غوړو صابون څخه استفاده کول، د پوستکي د پاره ډېره ګټه لري همدارنګه د ګلسرین او ګلاب ګډ مخلوط که پر لاسو باندې ومښل شي د رطوبت د جذبولو خاصیت لري یعني د هوا د رطوبت ځان ته جذبوي په نتیجه کې پوستکی نرم ساتي بله لاره د پوستکي د ساتلو دا ده کله چې مو لاسونه په صابون سره ووینځل نو څو څاڅکي لیمو پر واچوئ او هغه ښه پر ومږئ که چیرې د لیمو اوبه نه وي دغه کار د انګور د سرکې په واسطه اجرا کړئ . زیاتره ښځې په دې پوهیږي چې نوکان د هغوی د وجود (د تندرستۍ او روغتیا آینه ده) .

په دې وروستیو وختو کې د ښایست او ښکلا په باب په امریکا کې ډېرې زوروري څیړنې شوي او ویل شوي دي چې هر څوک چې غذایي رژیم پوره وي هغوی په ښایست او ښکلا کې فوق العاده اغیزه لري نو ځکه باید خپله غذا د شیدو، هګۍ، ماهي او غوښو څخه ترتیب کړي کله چې پوره غذایي مواد بدن ته ورسیږي، دا نه چې یوازې نوکان مو بلکه ټول بدن مو صاف او ښکلي رنګ پیدا کوي .

په نوکانو کې یوه برخه معلومیږي چې د نیمې دایرې په شکل سپین رنګ لري نو که چیرې بدن ته ښه غذا ورسیږي د ښکلا رنګ ئې زیاتیږي په نتیجه کې ستاسې نوکان ښکلي کیږي او ستاسې د نوکانو ښکلا ستاسې د لاسو ښکلا زیاتوي .

نوکان د بدن د نورو برخو په نسبت زیات حساس دي ډاکټران په دې عقیده دي چې نوکان د ناروغیو ښکارندوی دي . ډاکټر (ویلیام بنت بین) چې لس کاله ئې د نوکانو د ودې او نشونما په باره کې څیړنې کړي دي داسې وائي چې دوه ډوله ناروغي په ماشومانو کې د نوکانو د ودې مخنیوی کوي .

هغه ماشومان چې سم صحیح تغذیه کیږي نسبت و هغو ماشومانو ته چې ښه غذا نه خوري نوکان ئې ټینګ وي د نوکانو سلولونه عالي پروټین، کلسیم و ویټامینو او معدني مالګو ته زیاته اړتیا لري که ناسو ښه غذا خپلو نوکانو ته ونه رسوئ نو نسي کولای چې ښکلي او روغ نوکان ولرئ د نوکانو د غذایي رژیم په باره کې خاصه پاملرنه ولرئ په کافي اندازه پروټین ورته ورسوئ او کوښښ وکړئ چې کاني مالګې او ویټامینونه په زیاته اندازه خپلو نوکانو ته ورکړئ په تیره بیا کلسیم او ویټامین (بي) ډېر مهم دي .

بر علاوه میرمنې باید هره ورځ یو منظم روش د نوکانو په خاطر اجرا کړي چې هغه دا دی میرمنې باید خپل لاسونه مخصوصاً نوکان د زیتون په غوړو غوړ کړي وروسته لاسونه په بله وموږي تر څو چې د زیتون غوړي ښه باندې ننوځي بیا لاسونه په اوبو ومینځي وروسته بیا څو څاڅکي او به پرواچوي که د لیمو اوبه موجودې وي هغه او که د لیمو اوبه نه وي نو څو څاڅکي سرکه پورې وموږي څو په دې ډول د ښایسته لاسو میرمنې سي .

# د غنمو وږي

## (د دريمه برخه)

«خوب پر ځان باندې حرام که — چې ملت آرام بېده سي
ځان کړه وېرې دې دپاره — چې افراد ګوله ماړه سي
له مظلومه ځان خبر که — چې له ظلمه آزاد ده سي
بې وزلانو ســـره ښه کـــه — په هر څه چې ئـــې زړه ښه سي

آه ملت چې قربان نه کــړې ی، د بو څو تنو لپاره
سخت بازخواست به درځه وسي، بېره وکړه له قهاره

❀ ❀ ❀ ❀

د نيکو نوم ـــانت دي: — په سرو وينو ســـاتل شوي
چې ضايع نشـــي له تاڼه — ان و تاته سپـــارل شوي
په زړو مـــړې ونه‌چار شول — وډ يا نـــه دي ګډل شوي
لوی عظـــمت او تمدن ئې — په دنيا کې ښـــودل شوي
له هغو شو له را پاته، ليکن غـــږه چې ستا وارد دي
که ته سم وې په هر وخت کې، لوی ښتن دي مدد ګار دي»



### صابرشاه پښتنو مشرانو ته مخ راګرزوي وائي:

«تبريک وایاست دي زلميو ته — د پښتون کام مـــشرانو
لاس مو بو کو سره يوشي د — کوښش وکړئ د ښو زمريانو
خپل وزر سره نو دي کړئ — چې غافل نشي د زلميانو

چې تر تاسي وه ډېر پاته، او تل زموږ په‌ننداروه
اوس تر موږ تللي بر مخ دي، که ځه‌دوی بې لاس وپښو وه

❀ ❀ ❀ ❀

«آباد دې د مملکت مو:   په دې وطن دې ده چې مان
پاس په سر کښې ده ټومبلی   د ښاغلي احمد شـــاهان
له خپل ځانه ځان پوره کړي   احتیاج مکړي د بلچا ن
پرون هر څه چې وه تېر شوه   فکر بویه د ســـبا ن

که تفاق له منځه ورک وي، تاسې ژر به ژړلو ته پړی
په ملي وحدت ژا منو، و مقصد ته به رسېږی

# د حاجي جمال خان وينا

صابر شاه چې وينا بس کړه   جمال خان ژغ کړل په مینه
«مشر توب دې مبارک شه   احمدخانه ستا دې وینه
چې دې هېر نسي دا حال څه   پښتون تا ته امید کړینه
ستار ګوکي غوز ځي پا که   د پلار و پښتنې و بـــنه

ته خدای کړي په تا به لوړ شو، ژموږ پر تا ټینګ اعتماد دی
د اتفاق وبي به ودان شي، به دې زیري موږ ته ښاد دی»

❀ ❀ ❀

«بست به شي آباد له سره   بیابي چو ته ی کندو الی شی
هر ی خو اته به روانې   د سر و او چو قافلی شی
په څپو به هلمند را شي   هر طرف ته کی شیلی شی
پر هر کښ باندې به چو ته ی   د ز لمو نجو نو میلی شی

چې هلمند به په څپو کي، دوی ته کې ی ژاړه دنکلو ته
په ورو وروبه ئې ځر کند کړي خپل دژ ته پټ ارما نو نه

❀ ❀ ❀

«ټول دردونه به ښکاره کړي   چې پلرو ده ته سپارلی
یا نیکونو مو په شپو شپو   خاطرې ورته یې بلـــی
د ژ ه و پــهلـو انانو   افسانې ئې ژ ه ه ساتلی
بالــــه ځنګه ئې مــیر منو   ژموږ ژانګو وی زنګولی

دابه ټوله ور پیاده کړي، بیا به دوی وڅو روینه
د هیبت شو د به کړي پورته، څو پښتون پاځو ينه»

❀ ❀ ❀

«خلج رنځ به داو د ان کړي   د دا و ر دو ر به راسی
شو ر ما شور به د بلبـلو   دارم(۱) په باغ کی بیا سی
په همت به د ی ســر سبزه   ښکلی ملکه د فرا ه سی
د زابل توم به ژوندی کـړی   پنجو ائی به ور اڼ بیا سی

د غزني شاهنشاهی به، بیار ا پاځو ی له خوبه
هر طرف ته به خپره سی، ستا له ټینګه مې ټکو به»

❀❀❀



تهیه کوونکی : طالب

## د ژوند نغمه

دکائیناتو په ذره ذره کی دهستی دښاغلیی ی، د وجود په دی لایتناهي عالم کښې دژوند نغمه خوره ده سپینه په ښکلو موجوداتو کی د بقا سندری وایی آبشارونه په رمزونو، ونی او بوټی په نڅادی غرونه، آسمان، ستوری او سپوږمی ټول د کائیناتو ټول عالم ته خاص جمال ورکوی دغه دهستی ټول مظاهر ، جذبه شور او مستی د ښکلا پالو هدیه ده .

په انسانی عالم کښې دژوند نغمه د پیغلی په شونډو کی جلوه کوي چی د ژوند خواږه په ښکلو جامونو کی خلکو ته وړاندی کوی بی حساب پیغله یا ښځه د بشری ټولنو دژوند نغمه ده تو چیرته چی ښځه چپ وی دژوند نغمه چپ ده او چیرته چی ښځه بی غیری او کار کوی هلته دژوند هنگامه خوره وی .

## نفاق د شاعر له نظره

چې په دوست عمر مووه کی پر مخ تنگ
سبب دادی چې ځان د رکښو بل ځکه
نه یو هیڅ و نه یو ښتنه کړو له یوه
په خو یوه ژ به تیر وژو دکوم ټکه

د کوی لاستی که نه وی د ا خپل ځان
له ربنو به وه ، نه شی په الگه لگه

دا په غاړه د د غم تر بوده گلو ی
بودېل په مخ کی تیکه یو لکه بکه
کار دد ین دنیا سو یاته بای مود ا
چې دا تور گوندی د اسپین گوند هغه برگ

میړه ژوندی لاندی پاندی سر د خپل
تندا پاڅوته کاکړی سوی زهور د گډ
بیلتون ښته کی پخپل لاس تکړو ساز
بو ښتون یوه موو ښه، یو مو رگ
په ښتو به کړو خبری ټول وطن
څه پروا که ځینی شپږوابی څوک شپگ

سره جوړ په سو «مخلصه» پخپل کور کی
که خدای لیری کړی له منځه دښمن سگ
(مرحوم حاجی ولی محمد مخلص)

## درخسار طلب

لې څه مې دا که دلبر مې چې خمار یم
میخانی ته مې د وان که ناقرار یم
زه مشتاق یم ستاد شونډو څه مې مست که
زلفی توری په کچل که خریدار یم

حزین مه سه د لربا زما دفریاد ه
نو آموزه یم د عشق په لار کی زار یم
په ښایست دی جهان زیب کاگل رخسار ه
پر ارمان دا ته ښکاره که چې بیمار یم

جدائی دی لیونی کړم نازنینه
دیتنگ په شان سو ځلی ټول په نار یم
در په در درپسی گرځم پیدا نشوی
په طلب زه هر گړی ستاد رخسار یم

وژیری نه یو دمیو پیاله داو څه
شپه و ورځ په دی آرزو په انتظار یم
فدا محمد وژیری

## غزل

گلاب په نظر ښه دا ځی چې ستا یو څه شبهه لری
د سروی هم ښه قدد ی اما ستا په رنگ نه لری
شمشاد چې په خپل قد سره مغرور دی حال یی گوره
مدام له صدمی څه د صرصر ښاخونه مې ه لری

بادام چې په اندام ستا د چشمانو ځان تهوا بی
دلاسه د هر چا ادو نه تل پر عین لذه لری
امیل د مرغلرو په بها خپله لوډه ی کوی
داستا په مقابل کی لوی قیمت یو مخ کاته کړی
«شیدا» دی په اوصافو د ښه مخ مدام ژغیږی
دغه ای وظیفه د دخ یانی نو دعاجز څه لری
ښاغلی عبدالحکیم شیدا)

# د حسن تعریف

که په هجر کې څوک ما پوښتي له حاله
حال خو دادی چې ناتوان یم بې مجاله

زه د یار په دیدن څکه شتاب کړم
چې د عمر بقا نه وینم تر کاله

چې تر حسن تر جماله بې زار نشم
شرمنده یم د خوبانو تر جماله

ته و ما ته نصیحت مکړه ناصحه
عشق بې نیاز دی له ثواب او له وباله

بې د خپل اشنا د حسن له تعریفه
هیڅ مې مه پوښته له نوره قیل وقاله

ما د عشق په درس کې نور څه لوستي نه دي
بې له زلفو بې له خطو بې له خاله

په دنیا په آخرت مه دې خدای نه کا
بې نصیب د مهرویانو له وصاله

که یار سر په دیدن غواړې مه جاروزه
دغه حکم «رحمان» کړی دی دلاله

(رحمان بابا)

منتظر چې شوم دیار لیوندیان ته
نور په څه گورم و درو ومرجان ته

سر بسته په سې غنچې له خجالته
چې گلرخ په سیل درومي گلستان ته

برابر چې یې و مخ ته کتابي شو
لمر سپوږمي څکه ختلي دي اسمان ته

ښایسته تر لاله زار شي سر تر پایه
چې له سترگو مې سرې وښې ځي گریوان ته

چې نیازمن د جهان واړه پکښې پروت دي
څکه تل په زیارت ځم و گودستان ته

څو یوسف پکښې بندي و خبر واخله
زلیخا وه منتظره و زندان ته

هسې داغ یې دی زما پر صورت ایښی
چې حیران یې زه غریب یم و درمان ته

# د مسکین خاوریځی

صبا سحر دی شمال پیری کا
غنچې د گلو پاردی پاردی کا

چې ور پسې دی خزان بیشکه
بلبلان څکه پاندې ناري کا

⁕ ⁕

صبا سحر دی بلبل سوری کا
شمال په پای د گل خوری کا
غ ضلی دادی په ژړه کې باره
چیرته چې گلوی مادي هوری کا

⁕ ⁕

خزان دا ددو مې گلان په توی کا
غریب بلبل به په های و هوی کا
اشنای چې نه وي مین به څه کا
د زړه دمه به د یار په کوی کا

⁕ ⁕

چې راته وشوه د هجر موټه
خلاصه مې نه شوه د زړه گې غوټه
مدام مې او ښې د غم پر اوري
اوده اوبه شوه د صورت لوټه

⁕ ⁕

ای په صورت کې زما ارواح
بل غرض مې نشته بې له الحاح
د زړې سیب دې زما په خوله کړه
چې صحت مومم له دې تفاح

⁕ ⁕

د مشتقانو د زړه مقصوده
زه به په څه یم له تا خشنوده
نفع د وصل زما روزي کړه
نور مې توبه ده له بله سوده

.........................................

که یار یو نظر د مهر راته وکا
له چادي به نوره شا کړم و جهان ته

زه «مسکین» یې په ارمان د هجر وسوم
امیدوار دیم چې بیر د وصل ویادان ته

«مسکین»



تهیه کوونکی: احمد راشد

# ځوان باید په خپل نفس اعتماد ولري

لیاقت او اهلیت هغه جوهر دی چې با فضیلته ځوان د هغو د پلاس راوړلو د پاره زیار باسي، خو لې تو یوي خو دغه خصوصیتونه لاس ته راوړي. ځکه داسې نه ده

چې یو ځوک خپل ځان ته په لیاقت او شخصیت قایل شي او هغه د ځان استخدام کي.

هغه ځوک چې دا فکر کوي چې لیاقت او اهلیت بیله زیار او کوښښ څخه په لاس راځي یو ملوی اشتباه کوي نو هغه ځوک چې په خپل نفس اعتماد ولري

لومړی باید پر خپل نفس باندې حاکم وي او ورسته بیا د نورو احترام وکي.

همدارنګه په نفس باندې د پوره اعتماد په رڼا کې باید خپل لیاقت ولټوي او همدې هدف ته د رسیدو

د پاره د خود خواهۍ، نخوت او خپل ځان د ستاینې څخه ځان وژغوري.

هغه ځوان چې په خپل نفس اعتماد ولري هیڅکله د نورو په بدو ویلو او غیبت باندې خپل وخت نه تیروي او هم د خپل ځان د ستاینې او نور یې د پاره خپل قیمت لرونکی وخت د هوا او هوس په فکې خوشې او چټې نه تیروي.

هغه ځوان چې په خپل نفس اعتماد ولري هیڅکله د خپل شخصیت د ښکاره کولو د پاره کوښښ نه کوي، هغه ځوک چې په پوهه او علم باندې اعتماد ولري او هغه ځوان چې د خپلې پوهې او فرهنګ پر قدرت باندې تکیه وي او خپله وظیفه د وظیفې د پاره سرته رسوي، هیڅکله د خپل مقام د ساتلو د پاره د ټولنې ګټې تر فردي ګټو نه قربانوي.

هغه ځوان چې د آمر بنو په مخ کې د بې ځایه تسلیمیدو سرټیټوي د لیاقت د نه لودلو او اهلیت د خصوصیتونو څخه عاجزوي او د خپلې وظیفې د اجراکیدو په وخت کې د چغلۍ، دوه رویی، ابن الوقتی او سخن چیني څخه کار اخلي او دغه خصوصیتونه خپل شعار ګرځوي نو دا هغه ځوک دي چې سر بیره پر دې چې په نفس اعتماد او لیاقت نه لري د واقعي ځوان په قطار کې هم نه حسابیږي او پستو انسانانو په لړ کې حسابیږي.

هغه ځوانان چې د پوهې په قوه د ایمان په رڼا او په نفس باندې د اعتماد په جامه پټ وي د خپلو پاکو مقصدونو د تحقق د پاره خپله وظیفه په ښه توګه سرته رسوي.

دا ډول کسان هیڅکله په خپل ضمیر کې د دوه رویی او نیرنګ تخم نه کري، بلکه په پوره ریښتین ایمان او پاکه عقیده باندې په هغه لیار روان وي چې انساني کرامت او شرافت د هغه غوښتنه کوي.

او دا هم هغه کسان دي چې په خپل نفس باندې اعتماد لري او کولای سو چې دغه ځوانان د واقعي او ریښتینو ځوانانو په قطار کې وشمیرو.

## یوه لویه علمي ذخیره

د لېنګراد عامه کتابخانه چې سالټیکوف شدرین نومیږي د شوروي اتحاد د پنځو لویو کتابخانو د جملې څخه ده په دغه کتابخانه کښې اتلس ملیونه توکه ثبت او ذخیره شوي دي.

د همدې کتابخانې د کارکوونکو شمیر ۱۴۰۰ تنو ته رسیږي چې د هغو د جملې څخه (۹۰) تنه یې د دکتورا او په سویه په دغه کتابخانه کښې کار کوي.

د دغې کتابخانې کتابونه د قدامت له حیثه ۱۷۲۵ عیسوي کال ته رسیږي.

او همدارنګه په دغه کتابخانه کښې یو نیم ملیون ډول ډول کتابونه په خارجي ژبو سته چې دغه کتابونه په (۱۷۰) ژبو باندې خپاره شوي دي.

# د هند د سینمایي لوبغاړې سایره بانو کوچنی پیدا سو اما...

داوی چ پلی د شمع مجلی په خپله وروستی شماره کی د اپور خپور کړ او لیکلي یې دی چه د هند د سینما مشهوری لوبغاړی سایره بانو چه څو کاله دمخه یې

دغه هیواد د تکړه هنرمند لیپ کمار سره واده کړی و

دی وروستیو وختو کی یې یو کوچنی چې اته میاشتی یې نس کی تیری کړې وی مړ وزیږاوه .

دغه زیږیدلی کوچنی یو هلک و سایره بانو

کست د میاشتی په (۱۸) نیټه د سر په یوه ډیر سخت ود اخته سوه څو د خپل کور د ډاکتر سره

تماس ونیوا و ډاکتر وته وویل چې دد غې ناروغی وغی غه اعراض ستا د امیدواره کید و د وروستی میاشتی ی .

سایره بانو بیله کوم ځنډه د ډاکتر تر توصیې

روسته په روغتون کی بستری شوه او تر څه وخت وروسته ی یو مړ کوچنی وزیږاوه .

داپورټر ګندوی چه سایره بانو په ... ی سبب باته خواشینی معلومیږي خو دد غه کار دلیل چې

سایره بانو دد ی په ځای چې په روغتون کې ژوندو کړی ی تاج محل په ـــو ـــل کـــی ـــای و نیو

لت نه دی معلوم .

همدا رنګه دی ویلی وه چې ډیره وخته څخه یې د خپل کوچنی د پاره تیاری نیولی وه ، او حتی د هند د

ملکو څخه یې غوښتی وه چې دد ی د راتلونکی کوچنی پاره نوم وټاکی .

دغه رنګه دی د اهم ویلی وه په هغه صورت کې چې دغه نوم دد ی به ذوق برابر وی د نامه انتخابوونکی ته به جایزه ورکړې .

## نوی نسل ته

ای عالمیه د وطن داته پکار یې
که نن زوی یې د راتلونکی نسل پلار یې
د زاړه ال د مغرب تکړې ګوره غوره
ترې نه چه څیز و نه واخله دزړه مسره

ګوره تیره نه سې له خپل نا له مو اننګه
چه پیاله وا اخلې تشه له فرهنګه
د راتلونکی نسل پلار د هوا یم تا ته
د خپل پلار، نیکه څه او م دی ګوره ساته

زحمت کښه او زیار کښ اوسه عمد ام نه
لمړی د بن سا ته نظر کښې و روسته قام ته
دژوندون سا تنه ډیر مشوله ګرانه
ګوره نه سې چدو جهد کښې ستړ ماته

په دنیا کی اول توره بیا قلم دی
چاچی کړه ... دادواړه کاری سم دی
د دوستانو سره ګل سه او ګل او سه
د دښمن سره اغزی غوندی تل او سه

ستا په خاوره سی په دری څیزه معموره
فکر تیز او قلم تیز او تیره توره
علم و فن کی د هر چا څنی په سر سه
د جنګړې د کار دو با څنی خبر سه

ترقی هرګوره نسته په لباس کی
د عرفان څپه په مشعل واخله په لاس کی
دا افراط او سني تهذیب بلا ده
چی دنیا په دی غضب نن مبتلا ده

هم تفریط نسته ژموږ په آئین کښی
منع دی رهبانیت ژموږ په دین کښی
ځان دی ساته دمخه له دی جنجا له
چی و انه وځی د جادی د اعتدا له

(مجروح)



تهیه کوونکې پېغله سکینه نورزۍ

# حضرت عمر (رض) او کونډه ښځه

وائي چې د ژمي په سړو شپو کښې یوه شپه حضرت عمرفاروق (رض) د خلکو د حال معلومولو دپاره، د یوه ملګري سره دباندې ووت په دغه ترڅ کې

ئې د لیرې د اور د لګیدو وړانګه ولیده او د هغه لورته روان سو، کله چې ورنژدې سوو ئې ولیدل چې یوه ښځه ده په کړدي کې ئې دیګ پر اور باندې کېښی او د دې کوچنیان پر داغول دي، کوچنیان په ژړا د ډوډۍ غوښتنه کوي خو. ورته ئې د یوه ساعت څخه بل ساعت ته د ډوډۍ ورکولو ډاډ ورکوي. کوچنیان هرګړي د لوږې له کبله ژړا او زاري کوي حضرت (رض) د دغې صحنې

د لیدو څخه ډېر متأثر سو او نژدې ورغی سلام ئې ورواچاوه پوښتنه ئې ځنې وکړه چې ولې دا کوچنیان ژاړي؟

کونډې ښځې ورته وویل: «وږي دي»

حضرت عمر (رض) ورته وویل: ولې «د دیګ څخه ډوډۍ نه ورته راکاږې؟»

ښځې ورته وویل: او ګوره چې په دیګ کښې څه شی دی؟

حضرت عمر (رض) د دیګ سر پورته کې وئي لیدل چې یوه اندازه شګې په اوبو کښې ایښې پوښتنه ئې وکړه. چې ولې دې په دیګ کې ډبرې اچولې دي.

ښځې جواب ورکې چې د کوچنیانو د خفا ایستلو دپاره چې ګوندې خوب ورسي او بیده سي او زیاته

ئې کړه چې ژموږ او عمر (رض) تر منځ لوی خدای حاضر دی.

حضرت عمر (رض) ورته وویل چې عمر په تاسې څه خبر دی خدای (ج) دې رحم درباندې وکړي.

ښځې وویل چې آیا دی ژموږ خلیفه نه دی او پر موږ حکومت نه کوي؟ پر ده فرض ده چې باید ژموږ په حال

ځان خبر کړي او دا چې ژموږ له حاله خبر نه دی ده ګناه ده.

حضرت عمر (رض) سمدستي ولاړ او د بیت المال څخه ئې یوه اندازه اوړه او غوړي پر خپلو مبارکو اوږو، او راخیستل، ملګري چې ئې هر څو ورته وویل چې باید دا بار زه په شا کړم قانع نه سو او پخپله ئې هغه د کونډې کړدي ته راوړه په خپلو مبارکو لاسو ئې غذا (ډوډۍ) ور تیاره کړه دې او یتیمانو ته ئې ورکړه او د خدای تعالی (ج) شکر ئې ادا کړ. وروسته هر آمر او رئیس درلودونکي باندې لازمه ده چې

د خپلو تر دستانو او بېوزلانو په حال ځان خبر کړي او د هغو سره د خپل وس په اندازه مرسته وکړي.

# اتمسفير

هغه هوا چې د ځمکې د کرې شاو خوا يې ... کمربند په شان احاطه کړې ده اتمسفير بلل کيږي ... په درو طبقو ويشلې ده لومړۍ طبقه تروپوسفر

... الې، د هوا د دغې طبقې لوړوالې د ۱۰ څخه تر ۱۲ کيلو ... متره پورې دی او په ورو ستې حد کښې يې ګرمي ... سانتيګراد شپيتو درجو ته رسيږي د هوا تغيرات لکه

... باد، باران، طوفان او نور هميشه په دغه طبقه کښې ... پېښيږي.

## استراتوسفر

استراتوسفر د هوا د دوهمې طبقې ته وائي د دغې ... طبقې ارتفاع ۸۰ مترو ته رسيږي په دغه طبقه کښې اوريځ ... وړ او بو بخار نشته هوا يې بلکل آرامه او بې تکليفه ... ده.

## يونوسفر

يونوسفر د هوا دريمه طبقه ده چې ارتفاع يې ۱۰۰۰ ... کيلو متره ا[ټ]کل سويده.

... راديو يې امواج چه د ليرې فاصلې څخه خپريږي ... هوا د دغې طبقې سره ټکرلې او ښکته طبقې ته انعکاس ... کوي.

## نيوټن

انګليسي مشهور او پوه رياضيدان په (۱۶۴۳-۱۷۲۷) ... په يوه کوچنې کورنۍ کښې سترګې د دنيا ته خلاصې ... کړې او د کوچنيوالي څخه يې د فنې او علمي کارو سره ...

... مينه درلوده د مکتب تر خلاصولو وروسته په ۱۸ کلنۍ ... کښې د کمبريج پوهنتون ته داخل سو.

په پوهنتون کښې د فزيک او رياضياتو په زده کړه ... بو. نيوټن خپل افکار او عقيدې په ۱۶۸۶ کال د ... رياضي او طبيعي فلسفې) نومي کتاب کښې وليکل ... وڅو لوته يې وړاندې کړه. نيوټن بايد د عمومي جاذبې ...

... کشفونکی د ډېرو کوچنيو عناصرو د حساب ښسټ ... ښودونکی او د نورو د نظر يې پوه هم وبولو.

# د رياضي مصروفيت

وخپل يوه ملګري ته ووايا سئ چې په زړه کې يو عدد و نيسه او هم ورته ووايه چې عدد په ۳ کې ضرب که او حاصل ضرب يې د ۶ سره جمع کې هر عدد چې ولاس ته راغی هغه پر ۳ تقسيم کې.

وروسته د هغه څخه پوښتنه وکې چې خارج قسمت يې څو دی د هغه د خارج قسمت څخه د ۲ عدد منفي کې. هر عدد چې مو پيدا کی هغه عدد دی چې ستاسې دوست انتخاب کړی ؤ. د مثال په توګه:

$$۸۱ = ۳ \times ۲۷$$
$$۸۷ = ۶ + ۸۱$$
$$۲۹ = ۳ \div ۸۷$$
$$۲۷ = ۲ - ۲۹$$

$$۳ = ۳ \times ۱$$
$$۹ = ۶ + ۳$$
$$۳ = ۳ \div ۹$$
$$۱ = ۲ - ۳$$



# ټوکي ټکالي

## د بنديخانې لار:

يونا بلد سړی ښار ته راغی او ديوچا څخه يې د بنديخانې د لارې پوښتنه وکړه. سړي ورته وويل: د غه زرګري دکان ته ورسه هر څه چې په مخه درتله جيب ته کوه يې بيا او برخپله تيره څه - لس دقيقې به نه وي تيرې سوي چې بنديخانې ته به ورسيږې.

## پوه طبيب

يو سړی خپله ضعيفه مور په زنبيل کې د قوت د دوا د پاره طبيب ته بوتله.

ډاکتر ورته وويل: دا بايد ډېر څله تازه کوچې وخوري او باميې وکړي.

زوی يې دا خبره مور ته وکړه چې څه پکښې وايي.

مور ورته وويل: زويه ته پخپله فکر وکه، آيا زه فاچونه لرم چې کوچې په وخورم؟ وروسته يې زوی فيصله وکړه چې دا ميږه ته ورکړي.

کله چې دوی د طبيب له خوا په راووتل مور يې مخ ورواړاوه او پوښتنه يې وکړه: آيا دا يوه طبيب «لقمان حکيم» ؤ چې دا سې څه څه علاجونه کوي.

# ارغنداو د کندهار دیره سمسوره او زرغونه سیمه ده

د کندهار د ښار د لویدیځ په اته کیلو متری کښی یوه ډیره سمسوره او زرغونه ناوه پرته ده چی د ارغنداو دولسوالی په نامه یادیږی او په دغه کښی د ارغنداو

پر غیښه رود بهیږی چی د مرکزی افغانستان د غرونو له څوکو څخه سرچینه اخلی او په دغه ځای کښی له ارغنداو سره یو ځای کیږی او هر کله چی د کابل او د نورو ولایتونو د تقاطع څخه

راتیرسی نو د کندهار دولایت بوه لویه او پراخه ځنگه زرغونه کوی او بیا د لښکرگاه د جنوب په برخه کښی د هلمند د لوی سیند سره گډیږی.

## دولسوالی موقعیت:

د ارغنداو دولسوالی مرکز د بابا صاحب په کلی کښی دی چی کندهار ته ډیره نژدی سیمه ده.



د بابا ولی صاحب هوټل

د دغی ولسوالی ختیځ ته د کندهار ښار لویدیځ ته ئی د شاه ولی کوټ ولسوالی جنوب ته ئی د ډنډ او میوند دولسوالیو ځینی برخی پرتی دی او شمال ته ئی هم د شاه ولی کوټ دولسوالی بوه برخه ده.

## دارغنداو لوی کلی:

د ارغنداو سمسوره سیمه او زرغونه ناوه چی د دغه سیند پر دواړو غاړو آباده ده د کندهار زیاتره سردرختی باغونه په دغه کښی دی او لوی کلی ئی

سنځری، کوهکک، ناگهان، مناري، تابینونه، خسروان، شوگینان، مزرعی، جوی لاور، خواجه ملکک، مرنجان، سرده، سخ چالا، گل کلاچه، منصور آباد، بابیران

جلیران میراوخوران، اشلمار، باباولی او علی کلی دی.

## دولسوالیو اوسیدونکی:

په دغه ولسوالی کښی د پښتون قبیلو بیلی بیلی قبیلی لکه الکوزی، علیزی، کاکړان، پوپلزی، محمدزی، نورزی او بابیان میشته دی خو د الکوزو شمیر تر ټولو زیات دی.

## ارغنداو د سرو میلو د مرکز په حیث:

ارغنداو لکه څومره چی ودانه سیمه او ټول د بیلو بیلو میوو باغونه دی د کندهار د سترو میلو د مرکز په حیث هم دی.

## د شالمار غنغوری میله:

د کندهار په ارغنداو میلو کښی یوه ډیره شانداره او غنغوی میله د شالمار د میلی په نامه یادیږی که څه هم او س د غه میله دیو څو کلو نو راهیسی د پخوانی دود پر ځای کولو له پلوه یواځی په نامه اجرا کیږی او

پخوانی مزیت ئه لری خو دغه دلوی احمد شاه بابا د وخت څخه رواج شوی او تر ډیرو کلونو پوری د دی ولسوالی د شالمار په سیمه کښی سرته رسیده او بیا د وسته سرده او بابا صاحب ته نقل شوه.

دغې میلې څلوېښت ورځې او شپې دوام کاوه او د کندهار دخشکاوی، سپین بولدک، ارغسان، کلات، هلمند، فراه، تیرین او نورو سیمو پښتانه به ورته راتلل او د ارغنداو په باغونو کښې به ئې اطاقونه دراوایستل اوده لو په میله ئې په ملی اتڼونو، غزلو، غېږې ایستلو، ملی لوبو او ساز تیروله، او دغې میلې ته ئې د توتو میله هم ویله دا ځکه چې دجوزا په شلمه نیټه چې توت په پاخه شول شروع کیداله.

### دشکوفې میله:

ځکه چې د ارغنداو سیمه ټوله سر درختی باغونه دی نو د پسرلی پر وخت چې عموماً دحوت دلسمې نیټې څخه شروع کیږی په ارغنداو کښې دشکوفې موجوی او دښار خلک د درختی په ورځو کښې ډلې ډلې دشکوفې سیل ته ورځی او په باغونو کښې دشیرچای (قیماغ چای) میله کوی او دشیر چای سره حلوا او کوفته هم خوری.

### د باباصاحب او سرده میله:

هر وخت چې دشکوفې میله خلاصه شی نو بیا دهری جمعې په ورځو کښې دکندهار شوقیان سرده او باباصاحب ته میله ځی او دخپلو انځیوالانو سره درخصتی ورځ په غزلو، ساز وتو، سطرنج، ورقواو نورو لوبو تیروی.

### دارغنداو میوې:

دارغنداو په باغونو کښې دزرد الو، شلیل، شفتالو، مڼې، انار، تاکو، توتو، الوچه، بهی او نورې میوې ستړه او دغه باغونه زیاتره د کندهار دښار په خلکو پورې اړه لری.

په دغه لویه سیمه کښې ځینې پالیزونه هم کیږی غنم وریجې، جوارې، او اوربشې هم کری او دوریجې ئې د مرنجانی وریجو په نامه یادیږی.

### دمیوو صادرات:

دارغنداو میوې نه یوازې دکندهار په بازارونو کښې خرڅیږی او دهیواد نورو سیمو ته هم ځی بلکه خارجی هیوادونو ته د دغې ولسوالی ډیلې ډیلې میوې لکه زرد الو. شکرپاره او انار صادریږی او زموږ دملی عایداتو یوه لویه برخه تشکیلوی.

### دسون مواد:

ارغنداو دکندهار دپاره دسون دشیانو لویه منبع ده او دزرد الو او توت وچ لرگی په زیاته اندازه دکندهار په بازارونو کښې خرڅیږی او ددغې سیمې چنار، وله، توت او نور لرگی نجاران کاروي او له هغو څخه ډیل ډیل شیان لکه دروازې، کلکینان، چارپائی کټونه، زانگو، گهونج او داسې نور جوړوی.

### لاری او سړکونه:

ځکه چې د ارغنداو دولسوالی او کندهار دښار ترمنځ لوی غرونه پراته دی نو د مخه تر دی چه ارغنداو ته اوسنی لار جوړه شی څو بریخوا دکوتل مرچی پر لار دښاریان ارغنداو ته تلل او راتلل خو اوس پر کوتل مرچه حتی خر کاران هم نه ځی.

سردار محمد داؤد خان چه د کندهار نائب الحکومه ؤ د خپل دسیمې څخه ئې د باغونو په منځ کښې دشلو کیلو متره په فاصله یو پخه سړک دښار څخه تر سرده پورې جوړ کړی دا سړک اوس هم سته او خلک ارغنداو ته تگ او راتگ پر کوي.

د سرده دباغ کلخانه او حوض هم دغه سردار جوړ کړل.

د سرده میلمه تون د مرحوم محمد گل مومند د لاس نخښه او پخه ودانی ده.

### زیارتونه:

د ارغنداو په ولسوالی کښې ډیر مشهور زیارت دلوی ولی باباصاحب دی دغه ستر روحانی شخصیت سید حسن ابدال نومیږی او د عمر په ۹۳ کال په ۸۲۰ هـ کښې وفات شوی او دلی پر لوړه غونډۍ ښخ دی زیارت ته ئې خاص وعام ورځی.

### شاه حسینی صاحب:

شاه حسینی صاحب دباباصاحب مرید و روحانی ژوندئې تیر کړی او دباباصاحب ترزیارت څو پر لوړه دغره په یوه څوکه هغه ځای کښې پروت دی چه هلته د باباصاحب خلوتگاه و. (پاته په ۳۳ مخ کی)

ژباړونکی: (م،ی،و)

# د ښايست د ملکې ټاکل هم يو اوږد تاريخ لري

> د ښکلا د يوې داسې ملکې په وړاندې کې چې د يونان ستر و ستر پوهان وړاو
>
> سقراط، افلاطون، ارسطو، فيدياس او ځينو نورو هم ګډون کاوه.

په پخوانی يونان کې داسې دود و چې يوازې په ښکلو شهزاده ګانو او نارينه شا زاده ګانو سره واده کولای سوای او نورو ټولو عادي خلکو سوای کولای چې تر خپل مقام لوړ ديو چا سره واده وکي، چې دا دود د يونان څخه وروم ته هم ورسيدی (سيسرون) د يونان نامتو خطيب په خپله خطابه کې وويل: څرنګه به يوه رومی شهزاده ګۍ داومني چې د يوه مريي سره دې واده سي؟

..........؟

داوخت په يونان کې د (پريکلس) زمانه وه د يونان نامتو حکاك (فيدياس) به پر ډبرو او تلو ليکونه او نخشونه کول همدا وخت و چې د سقراط فلسفه او د (پريکلس) د سياست درس به و يونانيانو ته کښل کيدی.

آتن د يونان به ښارو کې لکه ناوي، داسې ښايسته و څکه چې لوړی سپينې ودانۍ او د مرمر جګو ستونو د ژبتون دوی په منځ کې او د غه ښار ته يوه خاصه ښکلا او عظمت ورپه برخه کړی و.

❀ - ❀ - ❀

په داسې يوه ورځ د آتن په جيمناز يوم کې شور ماشور و د يونان ښکلو او سپينو ځوانو به دور يښمو نازك کالي اغوستي په ډله ايزه توګه ولاړ دی او مشلان په لاسو کې وه همداسې په دې سيل ته په زرهاو خلك راغلي او تماشه به ئې کول مسابقه شروع کيدونکي وه په دې ډول چې اتو غښتلو نارينو به هر يوه ځوانۍ ښايسته ونيوله د مسابقې د پاره چې کوم حکم (ميرا) ټاکل سوي دده په يولی به دا پيغلی ځوانۍ ايله کړه سوې چې د مسابقې ډګر سرتر پايه په ځوب او ځغستا وو هي، د ډګر په پای کې او دو ر ته بل ژ چې دوی د خپلو لاسو مشلان په و لګوی او بير ته د مسابقې د ميرا او خوا ته راو ګرزي، نو هري ځلي چې به د مخه خپل لګولی مشعل د ميرا و لاس ته ورساوه هغه به د آتن د ښکلا ملکه يا په بله ښکلې ځلی و بلل سوه.

د مسابقې د ګټلو د پاره به هري ځلي خپل ټول زور وهي تماما و ه خو قهرماني لاس ته ورودلی ی.

يو کال چې داسې يوی مسابقې ته تيا ری نيول سوی وه (پينيا س) د حکم په توګه ور ته ټاکل سوی و دا څوان د آتن د غښتلو او دلاور د سپاهيانو څخه و څکه چې د (اسپارت) په جګړه کې يونانی لښکريان مخامخ سره سوي وه او يوه افسرده ته ويلی وه چې ژر ژر تن و يوه داسې سرباز ته اړ و چې زموږ د محاصرې حال و آتن ته په ځغستا ورسوی. هغه و چې دې کار ته (پينياس) آماده ګی ښکاره کړې ی او کله چې ئې په ځغستا پيلوکې د اسپارتيانو په سوو لښکريانو ئې د نيو لومخه کړې وه چې په نيو اوځی ته و ه بريالی سو ی.

نو څکه د دی لياقت په وجه نوموړی د مسابقې حکم و ټاکل سو.

مسابقه داسې شروع سوه چې حکم پر خپل ټاکلی ځای ودرېدی او هغه ئ ته په ونه جګ خلك هم ډګر ته را کښيو ته و يوه يوه ځلی ئې چې ځانونه ئې چوڼ کړی وه تر ملا ځينګه ونيول د (پينياس) په يولی پداسی حال کې چې د سيلانيانو په غږو ږنار و فضا ډکه سوه خوا ذا ئی او ښا يستي ځوانی چې هري يوی پخوا و مسابقې ته ځان تيار کړی و په ځغستا ئی پيل و کی داچې د ځغاستې په ترخ کې به ئی سپينې پونډې او پښې د مخکی څخه يو د ته کيدې داسې ګمان هم کيدی لکه سپين مرغان چې د مخکې څخه په هوا سوی دی د آتن د دی ځوانو له جملې څخه يوه چې تور د ويښتان او تور د ستر ګی ئې غټې والو ته او د بدن سپين والی ئې ولو بدېځ والو ته سوی و لکه هو سی چې د (المپيا) ډ. چمني مخکه مخلی داسې تو ندهر هی وه

حاضر خلک ځوله پوهیدل چې د انجلۍ مسابقه وهلو ته هڅه د نورو نجونو څخه ئې محسوس وه او ونیاوه هغه لګیدلي اوړته ئې ځان ورساوه خپل مشعل ئې په ولګاوه او تر نورو د مخه د حکم پر خوا دا وګرځیده په دې وخت کې د خلکو وږ ځو ګرا به سو څکه د دوی یقین سو چې د غه پیغله مسابقه وهونکې او قهرمانه کیدونکې ده.

د انجلۍ ځینو خلکو پیژندله او ځینو خلکو نه پیژندله چې دا څوک ده او موږ دی (کادیا) او میده چې د مور د خوا ترکۍ او د پلار د خوا د آتن د نومیالي حکمران پریکلس لور وه مور ئې هم د ترکیې د شهزاده ګانو څخه وه چې په ځوانۍ کې یونان ته راغلې او د پریکلس سره ئې واده کړی ؤ.

د یونان او ترکیې د مناسباتو د ورانۍ په وجه پریکلس دا ښځه بیرته پرې ایښې او خپل هیواد ته ولاړه هلته ئې د ا کادزوی سره واده وکړه.

(کادیا) پلار څخنې ګرځولې او دده سره استیدل

اوس به تو بیر ته راسو د بیان و دې برخې ته چې ښکلې کادیا چې لګولی مشعل پلاس مخ پر حکم (میر) په تراټ ځ پره تو نده راروانه وه حکم ته تر ټولو د مخه را ورسیدله او د هغه و غیږې ته ئې ځان ورواچاوه او لګیدلی مشعل ورو سپاره.

د هغه عصر د رواج سره سم ئې د ګلانو تاج د پیغلې کادیا پر سر ورکښېښود - په یوه داسې ګاډه کې چې هغه هم په ګلانو پوښل سوی وه کښېنول سوه د سیلانیانو پرخوا ئې راسمه کړه دا چې د خلکو په مخ کې تیریده د ګلانو باران د مبارکي د نعرو سره پر سر و ع ؤ دونه ګلان پروپاشل سوه چې دا پکښې پټه سوه لنډه دا چې کادیا د دې مسابقې قهرمانه د آتن د دغه وخت ډیره ښکلې نجلۍ یا د ښایست ملکه و بلل سوه.

بیا به را و ګرځو دې خبرې ته کله چې (کادیا) لګیدلی مشعل د (پیناس) لاس ته راورساوه او د هغه وغیږې ته ئې ځان ورواچاوه هغه دا په غیږ کې ټینګه د نیول پدې کار سره په دواړو کې عاشقانه غریزه راژوندې سوه د قهرمانې نجلۍ زړه نه غوښتل چې له غیږې ئې ځان و باسي څو د سیلانیانو حسو دا نه کتلو دا و دې ته اړه کړه چې ځینې را بیله سي ځینې حساس خلکو پوهیدل چې د میرا (پیناس) په غیږ کې د کادیا دوام د دوی زړونه هم سره بند کړي دي. نو دا خبره دونه خپره شوه چې د آتن د ټولو خلکو غوږ وته ورسیدل او هر څوک پکښې ګډ ؤ څو (پریکلس) خپله لور د (کورینت) ښار ته واستول څو دا خبره د خلکو د خولو څخه ولویږي. کله چې کادیا هغه ښار ته واستول سوه خلکو ولیدل چې (پیناس) هم په آتن کې ورک سو کوم مسافرین چې به د (کورینت) له ښاره راتله هغو به ویل چې موږ (پیناس) هم په خپلو سترګو ولیدی چې په کادیا پسې تللی او ځان ئې ور رسولی دی.

دا خبره چې د آتن حکمران، پریکلس ته ورسیدله ډېر خرو ښیدی، مربیان ئې ور واستول او خپله لور ئې بیرته د هغه ښاره آتن ته راوغوښتل کله چې کادیا آتن ته راغله دې د (پیناس) سره د خپل عشق او مینې ماجرا و خپل پلار ته ټکي په ټکي بیان کړه.

پلار ئې و خرو ښیدی او لور ته ئې وویل چې ته کرټ دیوه مربي او مربي زاده سره په هیڅ وخت کې واده نسی کولای - لور ئې خبره ورغبرګه کړه او ورته وئې ویل چې زه که وژل کیږم لا هم نه یم حاضره چې د بل چا سره وا دوسم - دا خبره دونه درنه سوه چې د آتن د قاضیانو په وړاندې کښېښول سوه هغو چې هم د داسې موضوع تکرار نه غوښت او په ژبا ته بیا چې باید د غه وصلت وشکیږي نو ئې (پیناس) دا وغوښت او د مرګ حکم ئې پر وکې چې باید سبا سهار د لمر ختو پر وخت د آتن په لویه هدیره کې ووژل سي.

دا خبره و یوه بانفوذه زاړه سړي ته چې د نا روغۍ په بستر کې پروت ؤ ماښام ورورسیدله هغه د (پیناس) سره ډېره پیژندګلوي درلوده او خپل زوی ئې ودې ته وګماره چې په هم دغه شپه (پریکلس) ته ورسي او (پیناس) ورته معرفي کي څو ئې د مرګه خلاص کي د بده مرغه کله چې د زاړه سړي زوی د کوره ووت

غله باندې پېښ سوه څه کالي ئې څنې کښلي او وهلئ ئې ورکړی وه، د ا ځوان تر سهاره د پیښې په ځای کې بېهوښه پروت ؤ کله چې ئې سترګې خلاصې کړې وې که ګوري چې سهار دی نو ئې په هم دغه وضع ځان ژر د اعدام و محل ته ورساوه څو (پیناس) ته نجات ورکي، د بده مرغه په هم دغه وخت کې چې د پیناس لاسونه ئې تړلي

د وسله والو ځوانانو په منځ کې په ډیره خواشینۍ د هدیرې و خوا ته د مرګ د پاره روان ؤ نجات ورکوونکی ځوان نارې کړې چې (پیناس) معوژنی دا خو مربي نه دی د شاهزاده (تسیس تراتوس) زوی دی

(پاته په ۳۰ مخ کې)

«تیاند» صوفی زاده :

# په راډیو افغانستان کې د پښتو ژبې د ډرام د ډیالوګ او د ستیج د مخ یوه ځلانده څیره

## فضل محمد (فضلی) یا یو تکړه رژیسور او باقدرته لوبغاړی

که مو کله راډیو اوریدلې وی نو په حتماً دو ډهی یو ځل او یا څو ځله د یوی آشنا هنری بڼې غږ د راډیو افغانستان د څپو څخه اورد اوریدلی وی دا هغه هنرمند دی چه تر ډیر ګران لوستونکی چه پیژنی او د



د کابل ننداری د یوی ښی او د زړه خاطرو په نمایش د یوی غلط فهمی په ډرام کښې چې تیر کال وښود شول ښاغلی فضلی د لوی رول لوبوی.

هغه د شخصیت او هنر په باره کې په تفاوت کولای شی مګر زه د لته غواړم چه د هغه د خصوصی ژوند سره هم آشنا سم.

د ارمان می په زړه کې ؤ څو یوه ورځ د کندهار د اطلاعاتو او کلتور په لوی مدیریت کې په خپله آرزو موفق شوم او نوموړی هنرمند چې کندهار ته د دوستانو د یوې لنډې کتنې د پاره راغلی ؤ ولید. علاوه

پر دې چې وخت ئې هم ډیر کم ؤ زما د اغوښتنه چې د ده د هنر او ده د ژوند په برخه کې ورسره وږغیږم قبوله کړه د ماښام دیګر پر شپږو بجو د اطلاعاتو او کلتور مدیریت

مخې ته راغی که څه هم دوه دی څخه ئې څو دقیقې تیرې وې خو زه د ځینو سوالو په فکر کې لوا لګیا وم پر یو چوکی می مقابل ته کښېنستی پایپ ئې له تمباکو ډک کړ یو دود ئې هم هوا ته وکړی او بیائی زما لومړی پوښتنی ته ځواب ورکړ. البته د وخت د کموالی په لحاظ بیله مقدمې د هغه څخه پوښتنې شروع کړې

- نوم می فضل محمد او تخلص می (فضلی) دی په ۱۳۱۳ کې د کندهار په شاه قبر کې زیږیدلی یم.

تحصیلات می تر لسمی ټولګی پورې دی خو وروسته د ځینو معاذیرو له کبله می د هغه تعقیب ونه کړای شوای مګر تر هغه وروسته می شخصی مطالعات او په دفتری داسی کی کتابت تر یو وخته پورې کړی دی.

د وخت د لږوالی له مخې می بیا هم مقدمه را لنډه کړه پوښتنه می څنې وکړه.

س - د کوم وخته څخه مو د تیاتر او یا ډراماتیک هنر سره علاقه دا شروع شوېده.

ج - جان محمد خان (پکتیا) یعنی د کندهار یاتو د ډراماتیک هنر پلار او د هغه زیات تشویق د دې موجب شو چې ما د دې هنر لمنې ته لاس وروا چاوه لکه څنګه چې معلومه ده هغه لومړی ډرام چې مو برخه پکښې درلوده د همغه د پلار ډرام ؤ د (دستمال) په نوم.

س- آیا لمړی استاد مو څوک و؟

ج: جان محمد خان (پکیتا) می استاد دی.

س- په عمومی نګاه په کندهار کی هغه وخت د تیاتر وضع څنګه وه؟

ج- د دی سره سره چه په ډېرو تنګو شرایطو کی ئی په فعالیت لاس پوری کړی و. خو بیا هم ډېر موفق او د خلکو په اذهانو کی ئی ځای ونیوی.

س- ستاسو لمړی ډرام کوم دی او هم که ممکنه وی د نورو ډرامو نومونه واخلی کوم چی ورو ستنه مو برخه پکښی درلودل؟

ج- په ۱۳۲۶ کی (د ستمال) په نامه لکه څنګه چی مخ کی مو ووېل لومړنی ډرام و چی زه د ستیج پر مخ ودرو ختلم.

او ورسته د لوی احمد شاه بابا، د پښتونستان، د شیطان مرګ، دډېری زړه، جاسوس او څینو نورو ډرامو کی می مختلف رولونه لوبولی دی.

س- کوم ډرامونه مو موفق او عموماً څرنګه رول لوبا وه؟

ج- البته د قضاوت په لیدو نکو پوری اړه درلودل خو فقط دومره ویلای شم چه په زیات تلاښ می کار کاوه او په اکثره ډرامو کی می هم د هیرو رول لوباوه.

س- آیا پوهېدلای سم چی د د غو تیاترو د له منځه تللو عامل څه و؟

ج- البته له یوی خوا د رسمی او مسؤلو ارګانو عدم توجه او د بلی خوا د محیط نه ساعدوالی څه کم کیچونه منځ ته راوړل.

س- ښاغلی (فضلی) کابل ته په کوم وخت تللی ئی او هم که تکلیف نه وی وواياست چی د راډیو سره مو همکاری له څه وخت راهیسی شروع کړه؟

ج- په ۱۳۳۸ کی د هغی علاقی له مخی می چی د دغه هنر سره درلودل کابل ته ولاړم او د خپل ورتګ په لومړی وخت کی می د راډیو سره تماس ونیوی چی لدی کار څخه می بوا څنی هیله د دغه هنر تقویه وه.

س- په راډیو کی مو د لمړی وخت څخه تر او سه ممولاً په څرنګه پرو ګرامو کی برخه اخستی ده؟

ج- په عمومی توګه می په ټولو پښتو تمثیلی پروګرامو کی برخه اخستی ده.

س- آیا ستاسو په نظر د ستیج د مخ او یا د میکروفون د خولی یعنی راډیو څخه د یوه ډرام، تمثیل، کوم یو په اوریدونکی او یا لیدونکی زیات اثر لری؟

ج- زه فکر کوم دا یو واقعیت دی چی د ستیج د مخ تمثیل نسبت د راډیو له خولی څخه مؤثر دی که څه هم ناسو ممکن پوښتنه وکړی چی د تیاتر په صحنه کی فقط یو وخت د ځلورو او یا پنځو سوو په حدودو کی تقریباً په یوه وخت کی د اتماشاه کولاسی مګر کیدلای سی چی راډیو په څېر کی ئی په لکونو او حتی په ملیونو خلک په عین وخت کی واوری زما په فکر هم دغه څو نفره چی د تیاتر تماشائی کېږي ده په پوره توګه ول متأثیر سوی وی او د تمثیل هر حرکت ئی احساسات راپارولی وی؟

س- د راډیو او تیاتر کوم هنرمند ان ستاسی د توجه وړ دی.

ج- په دری ژبی هنرمندانو کی رفیق (صادق) یو ډېر موفقه هنری څېره ده چی هم په راډیو او هم په تیاتر کی سادی نلری خو د پښتو ژبی په هنرمندانو کی.



فضلی، ستاره امینی زلیخا، برهانی، بادی چټک، عبدالولی یوسفزی شاداوډ دمقصود، محمد صادق شاکر، فضل ربی شیرزاد او محمد عالم حارث په راډیو افغانستان کښی د دوو د بیاد او په ډرام کښی د تمثیل په حال کښی لیدل کیږی

---

صائمه اکبر چی د پوره استعداد درلوو نکی ده زما توجه جلبوی.

س- ښاغلی فضلی. آیا په دی باب څه فکر لری چی د یوه لوبغاړی د پاره د ستیج پر مخ په لمړی مرحله کی قوی روحیه، هنری حرکت یا اکټ، آواز او نطق مهم رول لری او د احقیقت په راډیو کی څنګه وینی؟

ج- زما په نظر په لمړی درجه کی قوی روحیه مهم رول لری.

څنګه چې لوبغاړی د دغه صفت په درلودلو سره کولای شي چې پر خپل حرکت قدرت ولري په راډیو دوسته کې حرکت ژبات مؤثر دی خو پاتې ده دی تناوي آواز او حنجره هم ډېر رول لري. د یوه لوبغاړي ښه اخلاق او نیک سلوک د هغه د محبوبیت عمده عامل دی په راډیو کې حرکت د اورېدونکي د پاره کوم اهمیت نلري خو نور صفات په عیني شکل دي.

س- ستاسو د پاره د سټیج مخ او راډیو کوم فرق لري او که څنګه؟

ج- زما د پاره دواړه یو شی دي.

س- د یوه لوبغاړي موفقیت په څه کې وینئ؟

ج- لکه څنګه چې د مخه وویل شوه قوي توجه او پر خپلو حرکاتو تسلط درلودل یو هنرمند د موفقیت

په اوږدو سربېره د لته اخلاق نیکه رویه او د هغه په کامیابي کې لوی رول لري.

س- آیا د او پرېښ پا منظوم تیاتر په څنګه څه نظر لری او هغه او پرېښ چې د (یاران بی وفا) په نامه څه موده د مخه وچلول شو څرنګه ؤ؟

ج- او پرې یې ډرامو ته ژبات مؤثر دی خو د هغه د تمثیل شرایط مشکل دي البته په افغانستان کې مثلاً لکه تاسو چې د مخه وویل د غه د یاران بی وفا اوپرېښ که څه

هم د ښاغلي رفیق صادق د یادوني وړ اقدام ؤ خو د لوبغاړو کمبود او شرایطو ته مساعد والي د هغه د موفقیت د پاره مشکلات راغونډ ول.

ښاغلی فضل محمد فضلي چې په افغانستان- راډیو کې د پښتو ژبې د ډرامو مدیر دی ضمناً د مربوطه پروګرامو (رژی) هم پر غاړه لري او په دې برخه کې

یو تکړه رژیسور دی د هغه ډرامو نو په لړ کې چې ښاغلي فضلي چلولي دي و (قهرمانان) مې ډېر موفق ؤ په ۱۳۴۴ کال کې چې نومړې ډرام

وچلول شو سل زره افغانۍ د وهمه هنري جایزه ورکړل شول.

فضلي صاحب که پخپله یو باقدرته لوبغاړی دی خو د سالمي اکبر، سلمي، عبدالولي یوسفزي او چوګکي غوندې تکړه ملګري ئې روزلي دي.

ه- پدا سې حال کې چې تازه ئې پایپ ډ تو و تمباکو څخه ډک کړی ؤ یو دودئې ځنی کش کړ لاسو ته ئې

پر ژنګ نو تکیه کړل او د ځمکې خوا ته متوجه شو. څوزما دا سې ګمان سو چې ممکن زما دی هنري بحث دی خسته کړی بوی نو می د دوی نظر د هغوی د خصوصي ژوند او ژنو او کورنۍ خواته

د خبرو څخه ئې دا سې معلومېده چې واده ئې کړی دی او اوس د دوو کوچنیانو پلار دی د کورنۍ سره ډېره علاقه لري که څه هم هنري مصروفیت یې ډېر دی او حتماً د خپلو کوچنیانو سره ډېر لږ وخت وینې خو بیا ئې هم د یوه پلار او د کورنۍ د مشر په صفت د هغوی سره ډېره مینه څرګنده کړېده. تر مخه چې مو وویل ښاغلي فضلي څرنګه

چې یو هنرمند دی او د ژوند هیڅ رنګه ترخو ته ئې د دماغ د خاطر او په دفتر کې ځای نه دی ور کړی ژوند ئې د هنري فعالیت په څېر کې د ډېرو خوږو خاطرو څخه ډک دی او پدې چې د یوه هنر ښتن دی ډېر خوښ او راضي ښکاري.

ښاغلی فضلي ټول هغه تقلیدونه چې د ملي کلتور ضد او د دې محیط پر اقتصادي بنیاد باندې تاریکه اچوي نه خوښوي د ځوانانو څخه هیله لري چې همیشه

د ملي کلچر او دود په نظر کې نیولو سره ساده لباس واغوندي او د پاک وجدان درلودونکي وي.

دا وخت هوا تیاره شوه او نو زمې وانه غوښتل چې د دوی وخت و نیسم پدا سې حال کې چې د مرکې لیکلو

سوی پاڼې مې ټولولې د خدای په امانی مې ور سره وکړه او د لوی خدای (ج) څخه مې د دوی د پوره موفقیت غوښتنه وکړه..

---

د ( ۳ مخ پاته )

# د ښایست د ملکی ...

د اعدام مامورینو دی بیرته راوګرځاوه او بندیخانې ته ئې بوتی دده د نجات پېښه چې پر یکلس ته ورسیده څنګه چې هغه نه په همدغه وخت کې ور پېژندل سوی ؤ نو ډېری خوشحالی څخه ژړا او رغله او د خدای (ج) شکر ئې و کیښ چې دا بی ګناه شاهزاده وته وژل شو.

په هم دغه ورځو کې ئې پینیاس له بندیخانی دا خلاص کې دده او د ( کادیا ) دواده په مناسبت د ښادۍ یو لوی مجلس جوړ شو مورخین وائی چې پدا سې لوی مجلس کې به د یونان نامتو اشخاص او پوهانو لکه سقراط افلاطون، فیدون، کزنفون، اریستوفان، فیدیاس او څو نور و ګډون کاوو.

د(۵مخ پاتې)

# تور سپتمبر...

وس چې دفلسطین مبارزینو دتل ابیب پر هوائي ډګر
په موقیغ کې پر ۱۱ تنو اسرائیلي سپورټ مینانو حمله
کړل او هغه ئې دهغه ځای څخه وتښتول نو دیوزیات
شمیر هیوادو لخوا دفلسطین دمبارزینو دغه عملونه
غندل سول او احتجاجونه ئې پاندې وکړه. سربېره دې
ې دغه دالې المان پولیسو پر فلسطیني مبارزینو
حمله وکړل او هغه کې مړه کړل خو علاوه پر هغه
سرائیلو پخپل ټول قدرت په هغو ځایو کې چې دفلسطین
ملک او سیدل، بمباري شروع کړلي او ډېر بې ګناه
کوچنیان او سپین ږیري ئې مړه او ټپیان کړل د اسرائیلو
غه حملې نسبت دموټیغ وپیښې ته ډېري ناوړه وي
مګر هغو هیوادو چې پر فلسطیني مبارزینو په ئې انتقاد وه
کول او دهغوی هر عمل به ئې بد ګاڼه د اسرائیلو دغه
اوړه حملې ئې په سوریه او لبنان باندې ناچیزه وبللې
او په دې باب بې هیڅ ونه ویل.

تو د سوریه او لبنان هیوادو د اسرائیلو ددغه سختو
عملو په نسبت ملګرو ملتو ته خپل شکایت وکې او
ملګرو ملتو هم په دغه باب غونډه وکړل. په دغه غونډه کې
ې کومه فیصله وسوه، غیر عادلانه او د اسرائیلو په
ګټه وه. موږ دملګرو ملتو دغه فیصله د بوی نمونې په
ول یادوو چې د اسرائیلو په ګټه او دعربي هیوادو په
تاوان وه.

که څه هم دنړۍ ټولو هیوادو ته ښه ترا معلومه ده چې
سرائیل تیری کوونکی او همیشه ئې پر فلسطینیانو
باندې ظلمونه کړي دي او دوی ئې دخپلې خاورې څخه
ه لي دي مګر بیا هم ځینو هیوادو په ملګرو ملتو کې
ا پیشنهاد وکړ چې په منځنی ختیځ کې دې جنګي
عملیات ختم شي. دنو موړو هیوادو دغه فیصله د اسرائیلو
په ګټه او دعربي هیوادو په تاوان وه اسرائیلو د ۲٤٢
کال او په موده کې دملګرو ملتو هیڅ فیصله نه ده منلې
او همیشه دملګرو ملتو په خلاف خپل عملیات کوي
و خپلو ناوړه او ظلمونه ته ادامه ورکوي نو دغه فیصله چې
وی منلې ده او دمنلو وړ ئې بولي هغه دا ده چې باید
فلسطین مبارزین دخپلې خاورې ددفاع څخه تیرسي
و دخپلې خاورې دآزادۍ دپاره کوم
کوښښ ونه کړي او ددوی تر غلامۍ لاندې ژوند وکي

حال دا چې په نړۍ کې هیڅ بود اسې قانون وجود نه لري
چې د یوه هیواد خلک دې دخپلې خاورې دآزادۍ دپاره
د مبارزې څخه منع کړي. کوم وخت چې ځینو
هیوادو د اسرائیلو دغه بې رحمانه حملې نه تائیدولي
او ددوی ملګر تیا ئې نه کول نو داسې فیصله ئې وکړل
چې په منځني ختیځ کې دې د اسرائیلو دغه بې رحمانه
حملې ژر تر ژره بندې سي ځرنګه چې دغه فیصله د اسرائیلو
په تاوان وه نو دغه فیصله امریکا په ملګرو ملتو کې
ویټو کړل.

هغه بحرانونه چې دغو کلونو راهیسې په منځني ختیځ
کې پیښ سوي دي، دملګرو ملتو په فیصلو سره نه حل
کیږي. بلکه ددې اصلي او اساسي علاج دا دی چې
عرب په خپل حق ورسیږي او دوی ته خپلې ځمکې ورکړه
سي. دغه فیصله یوازې دنړۍ لوی هیوادونه کولای
سي چې په عادلانه ډول سره ئې حل کې، نه دملګرو ملتو
مؤسسه.

دوو وروستیو کلونو پېښو څخه داسې معلومیږي چې
د فلسطین مبارزین ډول ډول تیاکتیکونه
دخپلې خاورې ددفاع دپاره کوي او هیڅ یو هیواد نسي
کولای چې دهغو مخنیوی دهمیشه دپاره وکي مګر ځینې
هیوادونه کولای سو چې دفلسطین دمبارزینو دغه

تاکتیکونه دلنډې مودې دپاره بند کي لکه اردن
چې دفلسطیني مبارزینو پر کمپو باندې بې رحمانه حملې
وکړلې او دفلسطیني مبارزینو څخه یو زیات شمیر خلک
مړه او ټپیان کړل او دخپل هیواد څخه وشړل مګر
بیا هم اردن ونه سو ای کولای چې دفلسطیني
مبارزینو دغه دوام مدار مبارزې ورشنړي کې او دهمیشه
دپاره ئې له منځه یوسي.

کوم شعور او فکر چې دخپلې خاورې دآزادۍ دپاره
دفلسطیني مبارزینو په سر د کې پیدا سوی دی تر څو چې
ددوی خاوره او ځمکه ور اپله نه سي، ددې امکان نسته
چې د تور سپتمبر ډېر خطرناک جنبشونه ورک سي او دخپلې
خاورې دلاس ته را وستلو دپاره هر ډول قربانۍ ونه کړي

د (۱۰ مخ پاته)

# د کندهار خاصې لوبې...

کافي کېږي او داسې نور د پوهېدنې لیک څخه مطلب دا نه دی چې هلکان باید لوبې او ساعت تېري و نکړي او باد تفریح وخت و نه لري بلکه زه په دې

عقیده یم چې هر هلک ته د یوه صحیح مشغولیت او روزنه کافي تفریح او د لوبو چانس ورکړی شي چې څو کولای شي خپل د بدن غړي قوي او د صرف شوي دماغي انرژۍ تلافي وکړي په کندهار کې د بوی خوا د

هلکانو مشغولیتونه څو صا د عمومي رخصتیو په ورځو کښې ډېر کم دي او له بل پلوه دوی په داسې لوبو او ساعت تیري پورې ورځې تېروي چې بېله

نقصه بل شي په کښې مقصود نه دی او د انقصانو نه لکه چې پورته ورته اشاره شوې بغیله و دوی او د دوی و چارچاپېر ګاونډیانو اولادو یانو ته متوجه دي او په نتیجه کښې د دوی ټولنې صحیح اوسالم غړي هم

نه ګرځي موږ باید وخپلو هلکانو ته په کلکه منع وچه شو او هغوی ته اجازه ورنکړو چې خپلې ورځې په چټي او عبثو شیانو تېرې کړي بلکه هغه باید تر صحتي

پاملرنې، څوونې او روزنې لاندې ونیسو او یا اقلا هغوی په یوه کسب او کار مشغول کړو ترڅو د دغو بیکارو لوبو چې بدني او اقتصادي زیانونه پکښې پراته دي مخه ونیسو او تر وسه وسه ئې د راتلونکي ژوند لپاره

داسې چمتو کړو چې د ځان او خپلې ټولنې لپاره ګټه ورسولای شي دا ده زموږ صمیمي هیله چې خپلو ګرانو چاریانو او وطنوالو ته موږ دا اندې کړو .

.................................................

د (۱۱ مخ پاته)

# دوړکو اساسي...

وکړي ګواکي د دغه ستر او ارزښتناک کار ترڅنګه دي په ښه توګه وتلي، خپله وظیفه ئې اجرا کړې ی او د راتلونکي نسل او د تاریخ په نزد مسئول نه دي

بلکه اولاد به ئې د غه نیکي تل تله په څو یادوي .

که څه هم د انسانانو د اوسني او د راتلونکي نیکمرغۍ او ملي

هوساینې د پاره پوله اجتماعي اقتصادي او نورو اصل ارزښت لري خو په هغو ټولو کښې تربیتي او عرفاني مسایل د ډېر اهمیت

وړ دي او ځکه د ټولنې بنسټ د علم، عرفان او سمې روزنې پر پاخه اساس کښېښودل شي لکه د ودانۍ تهداب چه سم او پوخ وي د ټولنې ودانۍ ټینګه او محکمه راځي .

ان حکومتونه او انسانان د وړوکو د تعلیم او روزنې په لاره کښې ډېر زیار باسي، زیاتې پیسې خرڅوي او د دغه کار د پاره په علمي او تربیتي لحاظ ښه مهمو رسیدل لازم ګڼل شوي، وړکتونونه، ښوونځي او هر ډول

تعلیمي او تربیتي مؤسسې همدغه ته داغلې دي او د ټولو کوشش دا دی چه خپل وړوکي د روزنې د فن او د تعلیمي اساساتو سره سم لوی کړي ترڅو چې سبا د خپل هیواد او ټولنې د پاره ښکېږه او رسیدلي غړي ځني جوړ شي او د هیواد او هیوادوالو په دردو خوري او د خپلو خلکو د پاره ستر خدمتونه وکړي .

په دغه وخت کښې چې زموږ هیواد د انکشاف پر خوا روان دی د دیکه مرغه زموږ په خلکو کښې دغه احساس قوي شوی او هر څوک د خپل اولاد د راتلونکي ژوند په فکر کښې دی او خلک موږه ددې هیله دي چې د خپل اولاد د تعلیم او روزنې غم وخوري تو له دې کبله هغوی تعلیمي او تربیتي موسسو ته داخلوي او حتی خارجي هیوادونو ته د لیږلو هیله من دي .

خو باید دغه حقیقت هرګند کړو چې یوازې په دغه هیله لرلو او یا تعلیمي او تربیتي مؤسسو ته د هغو په ورسپارلو سره د والدینو او د کورنۍ د لورو مشرانو وظیفه سرته نه رسیږي او د هغو حق چې پر خپلو مشرانو ئې لري نه ادا کیږي بلکه کورنۍ مشران مکلف دي چې په کور او تر کور د باندې د هغو روزنې او اخلاقو ته پام وکړي او پرې نه ږدي چې پر بده لاره ولاړ شي، د وړکتوب څخه په اخلاقي کمزوري او اجتماعي فساد ونو اخته شي .

شک نه شته چې تعلیمي موسسو او د روزنې مرکزونه د وړوکو د روزنې په لار کښې خپله وظیفه اجرا کوي خو دا د والدینو وجیبه او فرض ذمت دی چې هغوی د خپلو وړوکو د اسلامي معتقداتو څخه غافله او بې پروانه شي او پرې نه ږدي چې د کوچنیوالي څخه هغوی اسلامي اوامرو ته شا ورو ګرځوي بلکه باید په دغه هکله او د اسلامي اخلاقو او روزنې په باب ئې کلکه پاملرنه او څارنه وکړي .

د ۲۵ مخ پاته

# دارغنداو ولسوالی...

خواجه ملک:

دخواجه ملک د کلی د بولو ی غره په سر کښی یا رن ستهٔ چی هغه ته خلک ورخیږی او دخواجه ملک صاحب په نامه ئی بولی.

دبابا ولی صاحب داو بو بر یښنا:

هر کله چی په هیوا د کښی د بر یښنا تأسیسات ی عمل منځ ته را غلل پنځو س کاله د مخه د صاحب داو بو د بر یښنا دستگاه و د دولت شو ه او ترا و سه

ی د کندهار ښار ته بر یښنا ور کوی.

دارغنداو په کوچنی غر فیل کوه بولی او د لیری په د فیل شیره لری چی دار بود بر یښنا یوه دستگاه هم بابا صاحب د کو تل په څنګ کښی د فیل کوه په یادیږی.

دژړی دښت:

دارغنداو جنوب ته دژړی دښت پروت دی چی په ولی برخو کښی کار یزی او بهٔ لری او که د و ځا ها تو په واسطه دغه دښتی ځمکی کر لو ته چمتو او کارو لو یږی په دغه و چه سیمه کښی زیات کسان او د و نه آبا د یدای شی.

پوهنه:

دارغنداو په ولسوالی کښی دگل په کلا چه کښی لیسه شته چی دمر لوی عبد الواسع په نامه یږی.

دغه لیسه اساسی ودانی لری او دزده کوو نکو ری ۳۱۰ تنه دی او دیو ولسو ښو ونکو له خوا ئی ر س کیږی.

په هناده کښی د شاه اشرف په نامه یوه منځنی ونځی لری چی دزده کوو نکو شمیر ئی ۳۵۹ تنو ته یږی او ۱۳ تنه ښوو نکی ئی تدریس چا ری پر مخ بیائی

د پیر محمد کاکی متوسط ښوو نځی ئی ۲۶۶ تنه زده نکی کوو او نه تنه ښوونکی لری.

دبا باصا حب په ابتدا ئی ښوونځی کښی ۱۴۸ تنه ز ده کو ونکی دی چی ۶ تنه ښو و نکی در س ورته وائی.

دخواجه ملک ابتدائی ښوونځی ئی ۱۷۷ تنه زده کوونکی او ۶ تنه ښو ونکی لری.

په شو ئین کښی ئی هو ابتدائی ښو و نځی د غازی محمد اکبر خان په نا مه شته چی دزده کوونکو شمیر ئی ۲۰۱ او ښوو نکی ئی ۶ تنه دی.

د کوهک د خو شحال خان ابتدائی ښوو نځی ئی

۱۵۸ تنه زده کوونکی او ۶ تنه ښوونکی لری.

دری کلیو الی ښوونځی ئی هم په زرتا له، پل په شو ئین او دریم ئی د سرده د یعقوب په کلاچه کښی دی او ددر وواړو دزده کوو نکو شمیره ۱۴ تنو ته رسیږی.

---

## پخی خبری

تمه حیا زایلوی او قهر و غضب عقل له منځه وړی.

حضرت محمد (ص)

خدای تعالی (ج) بیکار مو ګړی ته خو ښوی
حضرت محمد (ص)

څوک چی ډیر خاندی هیبت ئی لږیږی.
حضرت عمر (رض)

علم ډیر ښه میراث دی، ادب خورا ښه کسب دی، تقوا ډیره ښه تو ښه ده او نیک خوی خورا ښه ملگری دی.

حضرت علی (رض)

«رسوای»

«شاه محمد نوشاد»

د ښوونکي د ورځې په وياړ

# ته څپه ئې د عرفانه!

اې زموږ معنوي پلاره    د پوهنې قهرمانه
اې د ټول بشر غمخواره    ته څپه ئې د عرفانه

دغه ټول ستا برکت دی    په دنیا کې چې ئې وینو
دغه ټول ستا لوړ همت دی    اروپا کې چې ئې وینو
دغه ټول ستا ډېر زحمت دی    ایشیا کې چې ئې وینو

نتیجه ده ستا د زیاره    حاجت نه لري بیانه
اې د ټول بشر غمخواره    ته څپه ئې د عرفانه

پر اټوم بمب دی کامیابه    بشر تا کړی په چوونه
انسانان دي د مهتابه    خبر تا کړي په چوونه
د وحشت دوره نا بابه    عصر تا کړي په چوونه

کو ښوونه دې شانداره    ستا عزت دی ډېر بیشانه
اې د ټول بشر غمخواره    ته څپه ئې د عرفانه

چې میکروب کشف پاستور کی    ستا په زیارو شفقت
اډمی دی ډیا کټور کی    اتر بیکو په ډېر زحمت
پیشقدم دی بشر نور کی    په کوښښ و لیاقت

دغه ټول ته ئې شاهکاره    چې ئې یه دی کې روښانه
اې د ټول بشر غمخواره    ته څپه ئې د عرفانه

مخترع دی اډیسون کی    چې کاشف سو د بریښنا
دا جهان دی په ګلشن کی    چې ئې وینو شاوخوا
دا اوچ ډاګ دی چمن کی    ټول ممنونه دي دا ستا

ستا بښ دی بیشماره    و هر چا ته ئې عیانه
اې د ټول بشر غمخواره    ته څپه ئې د عرفانه

ستا مقام ته مې سلام دی    اې زموږ د ژوند سببه
پر موږ پور دی احترام دی    اې ښوونکي موږ د په
پر جنته دی لوړ مقام دی    اې د پوهې مرتبه

زه نو «شاد» دې خدمتګاره    تل دې ئې پر دې جهانه
اې د ټول بشر غمخواره    ته څپه ئې د عرفانه

# شمس الدین کاکړ

په تیره . کفه کې چې کم عکس
چاپ سوی ؤ د هغه سوانح موږ ته
چاغلی شاه محمد وزیري راستولی
ده چې دادی د هغه په نامه یې
چاپوو:

مس الد کاکړ د کندهار د ښار په
کلچ آبادنومي کلي کښې زیږیدلی
دی او هلته یې د کوچنیوالی دوره
تیره کړې ده چې بیا د سوز او درد
څښتن ؤ او خپل ډیر عمر یې په
هند ی کتیر کړیدی که څه هم



### شاه محمد وزیری

نوموړی شاعر د خپل وطن څخه
لیری او سیدی خو همیشه یې د خپل
هیواد په یاد خواږه خواږه شعرونه
ویلي دی.

شمس الدین کاکړ د خپلو
شعرو برجسته دیوان لری او په
۱۲۳۸ه کال کې یې نوموړی
دیوان تکمیل کی.

د دغه نامتو شاعر اشعار عشقي
تصوفي او په ادبي صنایعو ملبس دي
شمس الدین کاکړ د (سراج لعوتی)
په نامه یو بل کتاب هم لیکلی دی
نوموړی کتاب د پښتو نیم منظوم
نثر دی او د فقهي او دیني مسئلو بیان
کوی او ده د کلام نمونه په لاندی
ډول ده.

د خدای د پاره زما حبیبه
د رنځوراتو د رنځ طبیبه
زبات می ترحده د هجر رنځ سو
لې خبر واخله له ما غریبه



شمس الدین کاکړ

## پخې خبرې

څوک چې د آزادۍ اراده نه لری،
هغه اخلاقي مسئولیت ته هم غاړه نه ږدی

(ارسطو)

انسان هغه موجود دی چې باید تل
مخ په وړاندې ولاړ سی.

(نیچه)

د لوړ همت خاوندان د ژوند دانه
دلاری په پیچومو کې هیڅکله د ماتو سی
سره نه مخامخ کیږی.

(ناپلیون)

هغه څوک چې د نورو د آزادۍ مخالف
وی نو پخپله د آزادۍ لیاقت نه لری.

(لینکلن)

خلکو ته باید د آزادۍ د ساتلو
درس ورکړه شی.

(کارنو)

د آزادۍ ساتلو لومړی شرط
بوازې ملي بووالی او د خلکو
ترمنځ اتفاق دی. په دی قوت سره
استقلال او ملي حاکمیت ساتل
کیږی.

(فرانکلن)

د توری سوغات آزادی
ده.

(افغاني)

---

### د پوهانو افکار:

## کتاب

کوم کسان چې څه او عالی
افکار یې مل وی هغوی هیڅکله
بواځې او بې ملگری نه دی.

(فلیپ سونی)

کتاب بوداسی ښوونکی دی
چې بې له چلاخې څخه موږ تربیه
کوی او موږ د احسان مرهون
گرزوی.

(...)

د نړۍ د پوهانو سره
د آشنائی او خبرو یواځنی لار
د هغوی د آثارو مطالعه ده، کوم
چې هغوی سوونه کاله پخوا مړه
شوی او اوس ترخاورو لاندی
دی.

(دکارت)

څوک چې یو گټور کتاب
له منځه وړی داسی دی لکه چې یو
پوه انسان له منځه وړی.

(مسولی)

کتاب د تمدن پایه ده.

(...)

# پەزړەپورې خبرونه

## دمثانې د تیږو کوچنی کول:

دمثانې د تیږو ناروغان به په راتلونکی وخت کښې د جراحی چړې ته نور ضرورت پیدا نه کړي د المان د آخن د پوهنتون استادانو ډکتور تر هورست په خپل دوه کلن کوښښ کې بریالی شو چې د ږغ نه چټک د آواز په دستگاه جوړه کړي تر څو چې ددې دستگاه په واسطه د مثانې تیږې پرته له وینې تویېدو څخه ماتې کړي .

د اعمل داسې سرته رسېږي چې لمړی یو ستنه چې یو ملی متر قطر لري مثانې ته داخلېږي بیا د مثانې تیږه د هوا د فشار په واسطه ځنډېږي او د آواز د نوسانانو «په یوه ثانیه کې شل زره» په واسطه د مثانې تیږې ورې ذرې او په څو ملی متره وتیږو د بدلېږي چې دغه تیږې بیا په ډېره آسانی د هوا د فشار په واسطه خارجېږي .

د نوې طریقې په واسطه د مثانې تیږې که هر څومره غټې وي، حتی که د یوې مڼې په اندازه هم وي، بیا هم د پنځه څلوېښتو دقیقو په ترڅ کې ماتېږي د غه طریقه تراوسه پورې پر څلوېښتو ناروغانو باندې عملی شوېده .

د غو یو ستاذانو په مرسته دادې اوس ډاکتر تر هورست د دغې دستگاه په شپړولو بوخت دی .

دغه دوه دیرش کلن مخترع به دروان کال په اوږدو کښې خپل نوی میتود د و اشنگټن په کنګره کښې د څېړنې لپاره وړاندې کړي تر څو چې ورو سته له تحقیق او څېړنې نه دغه دستګاه د المان د ټولو کلینیکونو د استفادې وړ وګرځي . د دغې دستګاه څخه د صفرا د کڅوړې د تیږو په ماتولو کې استفاده نه کېږي ځکه چې د صفرا د کڅوړې د تیږو په ماتولو کې استفاده نه کېږي ځکه چې د صفرا د کڅوړې مجرا دومره کوچنی ده چې حتی ډېر نازک سنډاری تیرېدلای نشی .

## مصنوعی پښتورګی

بون المانی پوهانو چې د کتور هلتزنبابن ترمشرۍ د مصنوعی پښتورګی په جوړولو بریالی شوی دی چې ددې پښتورګی اندازه د سګرټو د قوطی په شان ده نو موړی پوه عقیده لري چې دغه دستګاه په مکمله توګه د پښتورګو د ناروغیو علاج دی . له شپږو میاشتو څخه راپدې خوا د کلکتې په دوو روغتونو کې په نوی دیالیزاتور په هر قبائله توګه په کار اچول شوی دی .

د کار له شروع څخه د امریکې د متحده ایالاتو د روغتیا وزارت د هلتزنبابن د تحقیقاتو کار په نسبت ډېره علاقه ښودلې ده او ددې اختراع د عملی کېدو د پاره ئې مالی مرسته کړې ده . دغه پښتورګی ډېر ارزانه تمامېږي تراوسه پورې ددې دستګاه څو د لسو دانې د ډاکتر هلتزنبابن په واسطه په کار اچول شوېدي .

## څلور زره کلنه ونه

په تایوان کې یوه څود الوبه ونه چې له څلور زرو کلونو راپدې خوا ژوندۍ ده دغه ونه د پنځه مترو له ورانې په اندازه لوړه ده .

ددې له ډډې او تنې څخه د ۱۲۵ سړو بوراژی ایله راتاو یدای شی تایوانیان نو موړې ونه په یوه خاص نامه یادوی . دوی نو موړې ونه (ویده سپوږمی) بولی .

# په کندهار کې د پښتونستان ملي ورځ ونمانځل سوه



د پښتونستان د ملي ورځې د نمانځلو مراسم
...ري په نيمه د قران مجيد د څو مبارکو آيتو په
...ت د پښتونستان په واټ کې پرانيستل شوه او
...دهار د سرپرست چارواکي په وينا د پښتونستان
بيرغ پورته سو.
...په دې مراسمو کې د ولايت د مقام وکيل او مستوفي

اجرا سوه. وروسته بيو شمېر چاربانانو زده کوونکي د موټرانو په سوړلي خرقې مبارک کې ته ولاړه او د حضرت محمد مصطفی (ص) پاک روح ته ئې درود ولېږلو

وروسته بيا د پښتونستان د ملت د آزادۍ د پاره دوعاوې وکړې. بيا د لوی احمدشاه بابا او د مير ويس نيکه زيارتونو ته ولاړل او د ګلو امېلونه يې



د پښتونستان د ملي بيرغ په جګېدلو سره د پښتونستان ملي ورځ پرانستل شوه

...ي عبدالصمد منصوري، عسکري او ملکي لوړو
...ينو، د ښار مخورو او په کندهار کې او سېدونکو
...ستانيانو ګډون درلود.

...په دې ترځ کې د طلوع افغان د ورځپاڼې
...لمانځه کې چې د پښتونستان د ملي ورځې په هکله
...سوې وه، توزيع او د کندهار د اوسېدونکو
...پښتونستانيانو له خوا ملي اتڼونه

بانديکښېښودل.

د دغې نېکمرغې ورځې په هکله د قبايلو د مديريت له خوا د چارواکي په ميلمستون کې د غرمې له خوا ميلمستيا سوې وه چې په هغه کې ملکي او عسکري

مامورينو، د ښار مخورو او په کندهار کې اوسېدونکو پښتونستانيانو ګډون کړی و.




د پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفار خان چې د استعمار پر ضد ئې سختې
مبارزې کړې او اوس هم په دغه هکله مجاهده کوي او ترهغو پورې
خپلو ملي مجاهدو ته دوام ورکوي څو چې پښتونستان جوړ شي

د کندهار دولتي مطبعه